# څرک

13
کالګڼه

له دیني او افغاني ارزښتونو څخه
دڅرک ۱۴ کلنه دفاع !

د عالیقدر امیر المؤمنین حفظه الله اختریز پیغام ته لنډه کتنه

دیارلسم کال، شپږمه، پرلپسې ۹۵یمه ګڼه،
سنبله۱۳۹۵ل، ذو الحجة ۱۴۳۷هق، سبتمبر۲۰۱۶م

د امریکا
د ملکرتیا پایله

په اسلامي هېوادو کې
ولې خوشالي او سوکالي نشته

دکابل کمـزوري حکومتولي،
دلویدیځوالو د کشمـکش په ډب کې !!!

په هیــواد کې
دتعــصب اور ته لمــن څوک وهي ؟!!

دغربي ښکېـلاک په مقابل کې
رامنځته کېـدونکی نــوی شرقي اتحاد



الهي نصرت او د ولس حمایه له اتل طالب سره ده؟

د عالیقدر امیر الؤمنین حفظه الله
اختریز پیغام ته لنډه کتنه

د مؤمنانو ترمنځ د اخوت او اتحاد په اړه د اسلامي امارت اعلامیه







علمي ، فرهنګي ، ټولنيزه اسلامي خپرونه

دريالسم کال، شپږمه، پرلپسې ۹۵مه ګڼه، سنبله۱۳۹۵ل، ذوالحجة۱۴۳۷هق، سبتمبر۲۰۱۶م

امتياز :

دا متيازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کميسيون

مسؤل مدير : عبيد تنوير

ليکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حميد ، جميل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۱۸۰ افغانی |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلداري |
| امريکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ يورو |
| يوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلداري |

يادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپاليسي ترجماني وکړي هره ليکنه دليکوال خپل نظر دی.

تخنيکي چارې: تخنيکي څانګه

پتې :

srak_111@yahoo.com


# لړليک

سرمقاله

بسم الله الرحمن الرحيم

# له ديني او افغاني ارزشتونو څخه
# دځرک ۱۴ کلنه دفـاع!

ځرک مجلې ۱۴ کاله وړاندې دروان جهاد ديوې مخکې چاپي رسنی په توګه په داسې شرايطو او حـالاتوکې خپلـې زرينـي وړانګـې خوري کړي، چې په هيواد دامريکاپه مشرى دنړيوال طاغوت ديرغل ناولي پنجـي تـازه خښـي شـوي وي ، پـه افغـان ولـس يـې دوحشـت اوبربريت لړې تيتي کړي وي ، دامريکايي ديمکراسی طوفان دافغان ولس په حرمت اواقدارو بلوا ګډه کـړې وه، دافغـان ولـس څخـه يـې دخپل فرياد او مظلوميت داوچتولو حق غصب کړي وو ، ميډيا اورسنی که خارجي وي که داخلي، له يوې مخې امريکايي ډالرو ګروکـړي وي، قلموالو، سياستوالو اودبشري حقوقو مدعيانوته د امريکايي ګټو اومنافعوساتل اوخونديتوب تربل هرڅه حياتي ارزښت درلود!!

نوپه دغسې کلابندو شرايطو اومحصورو حالاتو کې، څوتنو مجاهدو قلموالو داسـلامي امـارت دفرهنګـي کميسـون تـرڅنګ لانـدي توکل على الله کړ او دځرک مجلې په شکل کي يې فرهنګي هڅه پيل کړه ، چون دهغوي نيت ډيرسپيڅلي او اراده يې خورا راسـخه وه ، الله تعالى پرې خاص عنايت اومدد ولوراوه په ليکنو اونشراتي بهير کې يې لوی اثر، اغيز اوبرکت وغورځاوه ، هماغه وو چې په ډير لږ وخـت کې په هيواد اوله هيواده بهر دځرک منونکي وړانګي په خورا سرعت وځليدي، زرګونه مينه اولوستوال خپل او په ځان راټول کړل.

دځرک مجاهدو ليکوالو او بااحساسه چلونکو په تاندو قلمونو دمجهزې صليبي ميډيا تبليغات او نشرات وننګول په صراحت يې له هغوئ سره سيالې وکړه، دهېواد دازادۍ علمبردارانو ته يـې ددښـمن پـه وړانـدې دثبـات، صبر،اواسـتقامت روحيـه ورکـړه ، ددښـمن جنګي،سياسي او تبليغاتي دسيسې يې رسوا کړې او په مجاهدانه فکريې بې شميره قلموال، شاعران اواديبـان وروزل اوداسـلام او هيـواد ددفاع ميدان ته يې وړاندي کړل.

دځرک مجلې مهمه ځانګړتيا داده چې دخپل تاسيس له شيبو ترننه پوري يوه زره او يوه لويشت هم دالله پـه مـدد لـه خـپلې دينـی، جهادی او ملي داعيې نه ورسته اوپرشاه نه شوه او په هرډول تنګو او ضيقو شرايطو کي يې خپل نشراتي بهير پياوړی اوتانـد وسـاته،چي دايې دکاميابی او بري مهم راز اورمز بلل کيږي.

دځرک ښاغلو مينه والو اودرنو لوستوالو : داچې ځرک ستاسې په مرسته ، دعاګانو اوځانګړې ميني ، دادی ۱۴ کلنه شوه او تردې دمه ۹۵ ګڼي چاپ او خپري شوي ، ممکن دخپلې شانداره بريـا او مقبوليـت ترڅنـګ يـې ځينـي داسـې علمـي ، ادبي او مسـلکي کمـی اونقصانات هم ستاسي ترسترګو شوي وي ،چې بايد هغه پوره اواصلاح شوي واي ؛ خو انسان عاجز او هيڅکله يـې هڅـي او کـړني لـه هره اړخه پوره او بشپړي نه وي.

نو له همدې امله دځرک مسؤلين او چلونکي هيله کوي اوبلنه درکوي چې پرخپلو علمي ،ادبي اوفني مشـورو ، توصـيو اورغنـده نقدونو ځرک وويارې اوپه خپلوسالمو نظرونو يې دمحبوبيت اومديدی کاميابي کچه نوره درنه اولوړه وګرځوي.

دعاکوو چې ځرک په روان ، جهادي بهير او مطبوعاتي افق کې خپل مقام او حيثيت همداسې ځرګنـد اوځلنـده ولـري او داسـلام اوافغانيت ددښمنانو له هرډول عناد اوشرارت څخه يې متعال رب په امان او حفاظت کې وساتي ، امين



# پیام تبریکی عالیقدر امیرالمؤمنین شیخ الحدیث هبة الله آخند زاده (حفظه الله)
# به مناسبت فرا رسیدن عید سعید اضحی 1437 هق

بسم الله الرحمن الرحیم

الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر، لا اله الا الله والله اکبر، الله اکبر و لله الحمد.

الحمد لله الذي أنعم علينا بنعمةِ الإيمان والإسلام، حيث أنزل علينا خيرَ كُتبه، وأرسل إلينا أفضلَ رسُلِه، وشرع لنا أفضلَ شرائع دينه، له الحمد كلُّه، وبيده الخير كلُّه، وإليه يُرجع الأمر كلُّه، يخلق ما يشاء ويختار، ما كان لنا الخِيَرَة، سبحانه له الحمدُ في الأولى والآخرة، وله الحكم وإليه ترجعون. وأشهد أن لا إله إلا الله وحده لا شريك له، وأشهد أنّ محمدًا عبده ورسوله، بلّغ الرسالة، وأدّى الأمانة، ونصح الأمّة، وجاهد في الله حقّ جهاده، فصلوات ربي وسلامهُ عليه، وعلى آله الطيبين الطاهرين، وعلى أصحابه والتابعين ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين، وبعد:

فقد قال الله تعالی: "فصل لربک وانحر"، صدق الله العلي العظیم (سوره الکوثر ٢)

هموطنان مؤمن و برادران و خواهران عقیدوی من در گوشه و کنار جهان!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

عید سعید اضحی را به امید اینکه از صحت، عافیت و سعادت کامل برخوردار باشید برای شما تبریک می گویم، خداوند متعال همهء عبادات، قربانی ها، صدقات و اعمالی را که به هدف خشنودی او تعالی انجام داده اید مورد پذیرش خویش قرار دهد.

ضمن تبریکی عید مبارک اضحی، همهء مردم مجاهد، بخصوص مجاهدین راه حق را، فتوحاتی را تبریکی می دهم که در این اواخر خداوند متعال با فضل و نصرت خاص خویش، با دادن قربانی های مجاهدین و همکاری مردم نصیب صف جهادی کرده است؛ و با وجود استفاده از هر نوع نیرو توسط دشمن، افزایش عساکر خارجی و بمباردمان طیاره های گوناگون، ولسوالی ها و مناطق زیادی در ولایات مختلف از وجود دشمن تصفیه شده و لله الحمد بیرق سفید امارت اسلامی در آنجاها به اهتزار در آمده است.

برادران مجاهد!

اگر در سالهای اول اشغال مسئولیت ما تنها جنگ و مقابله در مقابل دشمن بود، مگر اکنون که مناطق زیاد کشور تحت حاکمیت ما قرار دارد، وقت آن فرا رسیده است که حاصل جهاد پانزده ساله را بدست آورده و اهداف جهادی را تأمین کنیم، از اهداف بزرگ جهاد، نفاذ شریعت الهی بر روی زمین خداوند متعال، تأمین عدل، استقرار و امنیت، حفاظت از سرحدات و حفاظت از جان، مال و عزت هموطنان و همه حقوقی که خداوند برایشان داده است و دفاع از آن ها می باشد.

مسئولین کمیسیون نظامی، والی ها، کارمندان محاکم قضایی، اعضای کمیسیون های ولایتی، مسئولین و دلگی مشران ولسوالی ها و دلگی مشران وهمچنان منسوبین همهء کمیسیون های ملکی باید در مناطق مفتوحه به امنیت، تأمین عدالت، نفاذ شریعت، حکومتداری خوب، ارتقای معارف دینی و عصری، و توسعهء کارهای عام المنفعه همچو راهها، پل ها، امور صحی، آب آشامیدنی، زراعت و تجارت و به همین شکل سایر کارهای رفاهی توجه خاص نموده و مانع کسانی شوند که در این راستا تخریب می کنند؛ تا آنکه مردم مومن ما زیر سایهء حاکمیت شرعی از سعادت زندگی خوش، روشن و بی نیاز بهره مند شده و در فضای صلح و آرامش نفس آرام بکشند.

مجاهدین به هدف موفقیت در این آزمایش بزرگ باید بطور مشخص نقاط ذیل را بطور جدی و ضروری در نظر بگیرند:

نیت های خویش را خالص لله فی الله بگردانند، بزرگ اند و یا کوچک، باید خود را به زینت تقوا مزین سازند، سپاس خداوند متعال را بجا آورند که آنان را توفیق فریضهء جهاد مقدس بخشیده است، عدل و احسان کنند و از کبر، غرور، عُجب، ظلم و خیانت اجتناب کنند، امتیاز باید بر اساس تقوی و امانتداری باشد، و در میان خویش فضای اعتماد و برادری را ایجاد کرده و از اموری که باعث بی اعتمادی در میان شان می شود اجتناب کنند، همچنین برادران مجاهد در میان خویش فریضهء امر بالمعروف و نهی عن المنکر را ترک نکنند، نمازهای خویش را در جماعت ادا کنند، از خیانت در بیت المال اجتناب ورزند، به بهترین وجه کفالت خانواده ها و فرزندان شهداء و زندانیان را کرده و هرگز آنان را فراموش نکنند، موقف شرعی بزرگان گذشته و رهبران محبوب و مهربان خویش (مرحوم امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله و شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله) را با تمام توان تعقیب کنند، خدمت مسلمانان و ایجاد اسباب آسایش و رفاهیت مردم را منحیث وظیفهء دینی هدف عالی خود بدانند، زیرا خیر رساندن به مردم از جمله محبوب ترین اعمال نزد خداوند متعال است.

عن ابن عمر رضي الله عنهما، أن النبي صلى الله عليه وسلم قال: "أحب الناس إلى الله أنفعهم، وأحب الأعمال إلى الله عز وجل سرور تدخله على مسلم، أو تكشف عنه كربة، أوتقضي عنه ديناً، أوتطرد عنه جوعاً، ولأن أمشي مع أخي المسلم في حاجة أحب إلي من أن أعتكف في المسجد شهراً"، رواه الطبراني. (یعنی: از ابن عمر رضی الله عنهما روایت است که رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمودند: بهترین مردم نزد خداوند متعال کسی است که به مردم نفع بیشتر می رساند، و بهترین اعمال نزد خداوند متعال داخل کردن شادمانی و سرور بر مسلمان است، یا اینکه از او سختی را دور کنی، یا قرض او را بپردازی، یا گرسنگی را از او بر طرف سازی، و اینکه همراه با برادر مسلمانم هنگام نیاز او بروم نزد من بهتر از آنست که در مسجد (نبوی) یک ماه اعتکاف کنم.)

برادران مجاهد (باید) به تصفیهء صف های خود توجه جدی نمایند، اشخاص بد فعل، بد نام، عیاش، دنیا پرست و بد اخلاق را که با مردم رویهء نامناسب می کنند در صف های خویش جای ندهند تا باعث اذیت و آزار مردم نشوند، همچنین مجاهدین با علمای کرام، روحانیون، متنفذین قومی و مردم متدین اهل نظر رابطه سازی کنند، از آنان مشوره خواسته و از تجربهء شان استفاده نمایند، عموم مجاهدین (باید) در کنار تربیت نظامی و عسکری، در بخش های دیگر مثل: رفتار نیک با مسلمانان، اجتناب از تلفات ملکی، تأمین عدالت و مردم داری نیز تربیت داده شوند و هر از گاهی در ارتباط با حقوق و حفاظت از حیثیت مردم برایشان هدایت لازم داده شود، و مجاهدین با اشخاصیکه از ادارهء فاسد کابل جدا می شوند یا اسیر می گردند نیز (باید) رفتار نیکو داشته باشند.

هدایت من برای برادران مجاهدم اینست که علاوه بر عملیات جهادی برای دعوت و تلاش ها جهت جلب اشخاص موجود در صف دشمن نیز توجه جدی نمایند و در این راستا مجاهدین عامه، مسئولین دعوت و ارشاد، کارمندان بخش فرهنگی و مطبوعاتی، صاحبان قلم و زبان باید با تمام توجه به دعوت و تنویر اذهان عمومی بپردازند و ضمن تربیت ذهنی مجاهدین خویش و نسل جدید، برای افراد موجود در صف دشمن چنان پیام هایی را به نشر بسپارند که آنان حقانیت و کامیابی صف جهادی را درک کرده و از تاریخ اسلامی و غیرت خویش مطلع شوند، به نقصان های غلامی و محکومیت پی برده و ماندن در لشکر اشغالگران برای شان منحیث یک عمل زیانبار و مهلک معرفی گردد.

آنعده از اهل خیر که از هر گوشه و کنار جهان با امارت اسلامی مساعدت کرده و یا به این صف جهادی اعتقاد دارند، وآنعده از علمای کرام و نویسندگان که داعیهء ما را تأیید و حمایت کرده و همیشه با ما، مشوره های نیک خود را شریک ساخته و اظهار همدردی کرده اند بخصوص در هنگام وقایع وفات مرحوم

امیرالمـؤمنین مـلا محمـدعمر مجاهـد رحمـه الله و شـهادت امیـر المؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله با مـا غمشریکی کردنـد، ما از آنان سپاسگذاری نموده و از خداوند متعال برای آنـان در برابـر این اخلاص شان اجر کامل مسئلت می کنیم.

با استفاده از مناسبت عید سعید اضحی یکبار دیگر بر آنعده از افغان ها صدا مـی زنـم کـه بـا اشـغالگران خـارجی در بخـش هـای نظامی و ملکی کار می کنند کـه بیاینـد یـک لحظـه در موقـف خـود دوباره غور و فکر کرده و بدانند که حملات امریکا و متحـدان آن بـر افغانستان بخشی از جنگ جهانی کفار علیه امت اسلامی می باشـد که هدف اصلی آنان از بین بردن نظـام واقعـی اسـلامی، بـه قـدرت رسانیدن غلامان تربیهء شدهء خویش بجـای آنـان، و نشرـ و تـرویج قوانین ضد اسلامی، افکار، عقاید و رسوم آنان در سرزمین اسـلامی می باشد، پس آنان باید دربارهء این موقعیت خطرنـاک خـویش کـه در صف جنگی اشغالگران همراه اند عمیقا فکر کنند، دوسـتی آنـان با کفار محارب بدون شک مخالفت آشکار با اوامر خداونـد متعـال و رسول او صلی الله علیـه وسـلم مـی باشـد؛ الله متعـال مـی فرمایـد: "فليحـذر الـذين يخـالفون عـن أمـره أن تصـيبهم فتنـة أو يصـيبهم عـذاب ألـيم" (النـور: ٦٣) ترجمـه: (پـس کسـانی کـه بـا فرمـان او مخالفت می کنند، باید بترسند از این که فتنه ای دامنگیر آنان شود یا عذابی دردناک به آنها برسد.)

پیام ما برای کشـورهای اسـلامی و مـردم آزادی خـواه جهـان اینست که مبارزه مـا جنـگ نـا مشرـوع و یـا بغـاوت بخـاطر اغـراض ناجایز نیست و نه بدون فتوای شرعی محض نمـایش دادن جـذبات است، بلکه چون کشور ما تحت اشغال قرار گرفته و یک نظـام ضـد اسلامی، بیگانـه پـرور و اجیـر بـه زور تانـک، تـوپ و طیـاره خـلاف دین، فکر و مزاج استقلال پسند مردم ما تحمیل شـده اسـت، ایـن جهاد و مبارزه ما ادامه دارد؛ و داشتن نظام اسلامی و کسـب آزادی کشور حق دینی و انسانی مـا مـی باشـد (در ایـن مـورد) کشـورهای اسلامی و مردم آزاد جهان باید بر اساس وجیبهء خود از این داعیهء برحـق مـا حمایـت کـرده و در پشـتیبانی از مـردم مـا مسـئولیتی کـه متوجه شان است آن را ادا کنند.

امارت اسلامی بخاطر حل مسئله افغانسـتان ضـمن سیاسـت نظامی خویش، تلاش های سیاسـی را نیـز ادامـه داده و بـه همـین منظور بخاطر روابط با جهانیـان و جهـت هـای دیگـر دفـتر سیاسـی تعیین شده است، ما می خواهیم با جهانیان روابـط داشـته باشـیم و پرسش ها و تشویش های موجود آنان را دربارهء خویش جواب داده و رفع کنیم تا در آینده کشور خود را از ضرر دیگران حفاظت کـرده و همچنان از کشور ما به دیگران ضرری نرسد.

در اکثر نقاط جهان که بر مسلمانان مظالم گونـاگون صـورت می گیرد خصوصا در سوریه که بنام های مختلف بر مسـلمانان عـام بم ها افکنده می شوند، خانه های مردم، مسـاجد، مراکـز صـحی و تعلیمی شان با خاک یکسان می گردنـد، مـا ایـن نـوع مظـالم را بـا الفاظ شدید تقبیح کرده و از انسان های بیـدار در تمـام دنیـا تقاضـا می کنیم که بخاطر ممانعت از چنین مظالم آواز خویش را بلند کننـد و اگر جلو اینهمه بی انصافی و ظلم های بی بازخواست که امروز بر مردم مستضعف جریان دارند گرفته نشود ضرر آنهمه (بـی اعتنـایی) به همه خواهد رسید زیرا از یکسـو ظـالم بـه ظلـم و اسـتعمال قـوت خویش ادامـه مـی دهـد و از سـوی دیگـر مظلـوم بخـاطر نجـات از مظلومیت خود و به هدف انتقـام بـه هـر وسیله و عمـل دسـت مـی اندازد کـه در نتیجـه بـا ایـن کـار نـا امنـی در جهـان بـیش از پـیش افزایش می یابد.

در پایـان از تمـام بـرادران و خـواهران ثروتمنـد و اهـل خیـر تقاضا می کنم که در این شب و روزهای مبارک عید، خانواده هـای شهداء، زندانیان و خانواده های آنان، معیوبین، ایتام، خانواده هـا و فرزندان مجاهدین (که محافظ سنگرهای حق می باشـند) را نیـز در خوشی های خویش شریک ساخته و به قدر توان خود با آنان کمک و همکاری نمایند.

در اخیر شما را به پروردگار متعال و نگهبان می سپارم.

والسلام.

زعیم امــارت اســـلامي افغانستان

شیخ الحــدیث هــبة الله اخــندزاده

۷/۱۲/۱۴۳۷ هق

# الهي نصرت

## او د ولس حمایه له اتل طالب سره ده؟

# خبیراحمدرم

دکابل مزدور رژیم ته ، چې مجاهدین دهیواد په کومه برخه کې غاښ ماتونکې ګوزار ورکړي اودشکست او رسوایي ډډزوي يې ټوله دنیا ونیسي ، نوبیا دخپل شرم او ذلت دپټولو لپاره ژر دابولالي پیل کړي ، چې دغه برید دګاونډي هیواد پاکستان په داخل کې طرحه اوپلان شوی وو ، دوئ ديوې مرموزي اوتپل شوي جګړې قربانیان دي ، دوئ به هیڅکله تسلیم نشي .

اوپه اصطلاح دوئ به دغه موضوع په پلانې راروانې نړیوالي ناستې اوکنفرانس کې مطرح کوي او خپل فریاد به دنړیوالوغوږ ته ورسوي اوداسې نور.......

اوس که له مزدور رژیم نه پوښتنه وشي ، چې که فرض کړو ، ددغه اوهغه برید پلان په ګاونډي هیواد کې جوړشوی وو ، ایا دتطبیق توکي ، مواد ، افراد اوامکانات بیا په کومه لار او ګودر له پاکستان څخه آن دهیواد شمال ، کندوز ، بغلان او تخار ته ورسیدل ، ایاستاسې څلور لکه ملي اردو او پولک نور څارګر پوځیان او کار کونکي په دغه وخت کې چیرته وو ، چې ددمره حساس پلان (خطرناک) طراحان دهیواد له پولو راتیریږي سوونه کلومتره سفر کوي ، ستاسې له مستحکمو پاټکونو او دپلټنو له مجهزو مراکزواوړي او بیا په خورا اسانی خپل دخوښې پلان اوهدف تطبیقوي؟

اوبل داڅنګه پاکستان دی ، چې دامریکااو ۴۰ هیوادونو په حضور اوچشم دید کې دومره نظر تیري کوي چې مجاهدین دې دپاکستان په ښارونو صریح پوځي پروګرامونه اوپلانونه طرحه اوتنظیم کړي او ته (مزدور رژیم) پرې خبریږې ؛خوامریکادې پرې خبره نه وي اویادي سترګې پرې پټې کړي ؟

ددې خبري شاته بیا نو دوه احتماله پراته دي ، یوداچې یا پاکستان له امریکا ، ناټو او ۴۰ هیوادونو څخه په پوځي او اقتصادي میدان کې قوي هیواد دی چې په امریکا او ناټو یې هم سترګې نه ډکیږي ؟

اویابه هم پاکستان دامریکا او ناټو په خوښه او رضایت دمجاهدینو جهادي فعالیتونو ته اجازه ورکوي اوځان به پرې ناګاره نیسي ؟

خو که حقایق راوسپړل شي ، دغه یواحتمال هم بیخ اوریښه نلري ، پاکستان ته که په هره بیه وکتل شي ،بیاهم په سیمه کې دامریکا اوغرب یومتحدهیوادپاتې شوی او په ډیرو مواردو کې ورسره نیږدې تعلقات او روابط لري اوله دغې لارې پراخي مرستي هم هروخت ترلاسه کوي ، نو نه پاکستان داجرائت کولای شي او نه يې اقتصادي ، سیاسي او پوځي ګټې داایجابوي چې دامریکااوناټو په خلاف دې عمل وکړي ، اودهغوئ په ضد دې دمجاهدینو دومره اوږد حمایت ، چې له یوې نیمې لسیزې هم اوړي زړه ورته ښه کړي .

ځکه دامریکا اوناټو په افغانستان کې هره ورځ ګڼ پوځیان وژل کیږي ، په هرو ۲۴ ساعته کې یې په جګړه شاوخوا دوه دری میلونه ډالرمصرفیږي اودمجاهدینو کلک مقاومت اوبریدونو دامریکا اوناټو دقوت ټوله دبدبه اود( سوپر پاور ) دعوه ترپوښتنې

لاندي راوسته ، دسياست او قوت گراف يې صفرته راتاوکړ، نوامريکاپه هرقيمت داهيله درلوده او لري يې ، چې دافغانستان جګړوکتي ، خپل ولس او نړۍ ته په ډاګه کړي چې دوئ په افغانستان کې هسې دوه تريليونه ډالر اوپه زرګونو امريکايي عسکر خاوري ايري نکړل ، بلکي جګړه يې وګټله او اسلامي امارت ته يې خداى مکړه ماتي ورکړه .

پاکستان هم چې څه امريکا ورته ويلي اوپه نوموړي هيواد کي چيرته دمجاهدينوکوم مشراويا کشر په مخ ورغلی اودفعاليت ځاى يې تثبيت شوی په نيولواوکړولو يې صرفه نده کړي ، خوداچې بيا هم مجاهدين له يوې نه بلي ورځي ته قوي شول او ياقوي کيږي او اوس دافغانستان په ۸۰ فيصده برخي واک اوسلطه لري ، دا ددې معنا نلري چې ګواکي پاکستان له مجاهدينو سره مرسته کړي اويا امريکا دخپل ظلم اووحشت کومه حربه دمجاهدينوپه ضد چې په لاس کې يې درلوده هغه يې نده کارولي.

امريکايانو په افغانستان کې زهرجني وسلي، دبې باون اوډرون الوتکوتول وحشتونه اومهارتونه وکارول ، ډول ډول زندانونه يې له مجاهدينواوعامو افغانانو ډک کړل ، هرډول اقتصادي اوسياسي کلابندى يې دمجاهدينو په مقابل کې اعمال کړي ، تردې چې کوم يوشتمن افغان له مجاهدينوسره دڅه پيسو دورکړي هڅه کړي هغه يې دبګرام او ګوانتنامو ترزندان پوري رسولى

اوتړتولو ځورونکي حقيقت دادى چې امريکا او مزدوررژيم دطالب زخمي اوټپي ته په روغتونو کې دتداوي اودرملني اجازه هم نه ورکوي چې پرې پوه شوي ټپي يې له روغتون نه پورته کړی اوزندان ته يې ليږدولی ، دغه رازيې په لسګونه هغه ډاکټران تربګرام پوري رسولي اوکلونه کلونه يې هلته شکنجي ورکړي چې



دمجاهدينود ټپيانو ددرملني اودزخمونودپانسمان کولو شک يې پري راغلی ؟

خودامريکا او مزوررژيم په دومره کړاوونو ، کلابنديو اووحشتونوسربيره بيا چې هم مجاهد فاتح اوبريالى راوتلی ، په لکونو خارجي او داخلي لښکرو ته يې کلکه ماته ورکړي ، هم يې ځان او خپله داعيه پرجوشه ساتلي او هم يې دخپل اتل ولس له عزت ، استقلال او ارزښتونو څخه په نره دفاع کړي ، دانوبيا پرته لدې چې شاته يې يو نه ماتيدونکی معنوي قوت ياد شي اوهم دطالب دتوري بريښ وبلل شي نور اټکلونه اوتذويرونه يې که څوک ورسته ټومبي نو هسې به دجهل او عناد په وريځو کې ډوب وي اويابه ددغو بې بنسټه تبليغاتو دنشر اواشاعت له امله درانه اوپريمانه ډالر ترلاسه کوي.

باور لرو که دکابل مزدور رژيم دمجاهدينو په خلاف تردي سل اوزرچنده نور هم منفي تبليغات وکړي او دروان برحق جهاد تړاوو ترپاکستان اويابل کوم هيواد پوري ورکړي اويادناټو نړيوالو غونډوته خپلي کوکاري وباسي ځاى ځکه نه نيسي چې الهي نصرت او دافغان ولس حمايه صرف اوصرف له طالب او مجاهد سره ده ، له چا سره چې دغه دوسترې قوي ملاتړي او همکاري وي ، دښمن به يې هميش خوار ځار ، ذليل اوپه شرمونو شرميدلی اولار ورکی وي . ان شاالله تعالى .

# د "رابرټ بیلز" او "انس حقاني" فیصلې د عدالت په تنده تور داغ!

لیکوال نصیب خدران

۲۰۱۲ میلادي کال د مارچ یولسمه نیټه وه، د قندهار ولایت په پنجوایي ولسوالۍ کې یو امریکایي عسکر رابرټ بیلز په نیمه شپه د خپل پوځي مرکز څخه راوتو، په دروازه کې ولاړ د اردو عسکرو کوشش وکړو چې را منع یې کړي، ولي چې د بیلز ژوند ته یې خطر جوړیدی شو، امریکایې عسکر د دوی غوښتنې ته غوږ ونه نیو، ورته غوسه شو او د اردو عسکر یې غلي کړل، د کلي په طرف لاړو او ورک شو، لږ ورسته د ډزو غږونه راغلل، د اردو عسکر اندیښمن شول، چې هسې نه د امریکایي عسکر ژوند ته خطر پیښ شوی وي؛خو دلته کیسه بل ډول وه.

عسکر د نږدې کلي یو کور ته ورننوتلی وو، د یوې کورنۍ ۱۶ تنه چې ۹ تنه یې ماشومان وو، نور ښځې او سړي وو په شهادت رسولي وو او بیا یې جسدونه ته اور ورته کړی و.

عسکر ورغلل رابرټ بیلز یې پوځي بیس ته بیرته راوست او بیا یې کابل ته راوړ او روغ رمټ یې امریکا ته ورسولو.

په دا ټوله کیسه عدالت سترګې پټې کړې، امنیتي ادارو، وکیلانو او دولتي چارواکو ځانونه غلي کړل، د شهیدانو کورنۍ ته یې د سړي په سر یو څه ډالر ورکړل او ورته وویل شوو، چې خولې مو بندې کړئ.

دا کیسه هلته رایاد شوه، چې د عدالت لومړۍ محکمې د انس حقاني د اعدام پریکړه وکړه، عجیبه قضاوت دی، د زرګونو کیلومتره لرې راغلی انګریز افغانان د چرګانو غوندي حلال کړي او بیا زمونږ چارواکي یې روغ وطن ته ولیږي او انس حقاني چې نه یې کوم جرم ثابت وو نه یې په کومو نظامي چارو کې لاس وهنه ثابته وه هغه د اعدام په سزا محکوموي، ولې چې پلار او ورونه یې د همدغو انګریزانو په خلاف د آزادۍ او اسلامي حاکمیت لپاره مبارزه کوي.

که د انس د اعدام پریکړې علت دا وي، چې د جهادي مشر زوی دی؛ نو بیا دې صلاح الدین رباني، حبیب الرحمن سیاف ، احمد مسعود، حبیب الرحمن حکمتیار، ظاهر قدیر ته هم د اعدام سزا ورکړل شي، دوی ولې د مراعاتو، وزارتونو او چوکیو خوندونه آخلي او آزاد ګرځي؟ د دوی پلارانو هم د یرغلګرو روسانو سره جنګ کړی وو؛ خو د انس د پلار جرم یواځي دومره زیات دی، چې روسانو سره یې هم جهاد کړی وو، ورسره د ناټو د ۴۹ هیوادونو سره یې هم په جهاد کې څلور بچیان قربان کړل او مقاومت یې دوام لري.

د امریکایانو چې خوښه وي "رابرټ بیلز" لاسونه په وینو ککړ د عدالت او دولت له منګه روغ امریکا ته رسوي او بې ګناه د مدرسې طالب انس حقاني د قطر نه کابل ته راوړي او د اعدام په سزا یې محکوم کړي.

د انس کورنۍ د روس او بیا د ناټو د یرغل په خلاف د قربانیو یو ځلیدلی تاریخ لري، د حقاني کورنۍ د انس د څلور ورونو په شمول د دوی کورنۍ څخه ۵۸ تنه شهیدان ورکړي او په سختیو کې بلده کورنۍ ده.

خو افغان دولت او عدالت دې لږ د ملت او وطن ګټو ته هم پام کوي، امریکایان به د دوی د دفاع لپاره تل دلته نه وي، که د امریکایانو د خوښۍ لپاره دوی انس حقاني د اعدام په سزا محکوم کوي، نو د امریکایانو دښمن به کم شي.

زما په اند د اشرف غني د حکومت او امریکایانو دښمنان به نور هم زیات شي. د دوو یرغمل شویو انګریزانو د وژلو سره تر ټولو زیات تاوانون به یې د افغانستان دولت وزغمي.

امریکایان به په باګرام کې ننداري ته ورته ناست وي او خپل هدف ته په رسیدو به د خوښۍ جشنونه کوي.

د دې حکومت د عدالت په تنده به د تل لپاره د شرمندګۍ یو داغ جوړ شي، چې قاتل انګریزان به یې خوشي کول او د دوی څخه د وطن دفاع کوونکو خپلوان به یې اعدامول.

# دافغانستان کمزوري حکومتولي،

## دلویدیځوالو د کشمکش په ډب کې !!!

بت شکن

دکابل دګډوله اداري اختلاس ، اداري فساد،رشوت ،غلا،مسلمان وژنې ،وطن پلورنې احساس ،بي دینی،اسلام ضد او د ولسي عداوت تعفن او بدبویي نه یوازې چې سیمه ایز هیوادونه مسموم کړي اوپه کدورت یې لړلې ،بلکې خپل باداران او لویدیځ خواخوږې یې هم دخپلو مکروهو غازاتواو مکروبونوله چټلیو نه چاپیریال ساتنې ته اړیستې دي ،هغه غربیان چې یې دخپلو مجللوشاهي ماهیونازولې عسکر دافغانستان دخوارې دیموکراسۍ دچاغیدو لپاره نذرانه کړل او هغه دجنرال دوستم خبره چې (امریکایانو افغانستان کې ډیر شهیدان ورکړي او دافغانستان خاوره ددوئ دشهیدانو په وینو سره ده)او هم یې ددې پاشل کیدونکې ولسواکۍ دتحفظ لپاره دخپلو هیوادونوبې خرته پانګې او سرمایې دلته تباه شوې، خوبیا هم ددې دیموکراتیک حکومت

دکامیابیدو او پرمختګ کومه نښه او نشان نه ښکاري ، دوی نن داشرف غني او عبدالله دګډ حکومت څخه ناراضه ښکارې او نور دې حد ته رسیدلې، چې په خپلو رسمي نړیوالو غونډو کې پرې نیوکې پیل کړي .

ددې لپاره چې بیخې دکابل چارواکې نهیلې نشي، یوشمیر هیوادونه یې بیا ننګه وکړي اودحکومتولۍ دمشروعیت څه کونجونه ورته تش پریږدي ،ددې لپاره چې په اصطلاح دلویدیځوالو په ګوتو رغول شوي تنکۍ او ځوانه دیموکراسي له شړیدلوڅخه وژغورل شي ،لازمه ده چې ملل متحد ورته وخت نا خت رسمي غونډې جوړې کړي او نورې چندې او بسپنې ورته دملاتړنې په موخه اعلان کړي، خو هلته چې دنورو ګڼ شمیر غربي هیوادونو زړونه له غمه ډک او نور چاودیدوته نږدې دي ، نور مزید تحمل ددې ناخوالو

نلري، نو په واز کومې او ژړانده غږ ، دتابید او ملاتړ پرځای دکابل اداره چیان دافیون د غوزو په شان تر نشتر لاندې ونیسې او زخمې زخمې یې کړي ،دغونډې دجوړیدو هدف معکوس شي اود ملاتړ غونډه په ناندریو پای ته ورسیږې .

پدې وروستیو کې دنیوزیلینډهیواد چې دملل متحد نوبتي مشري هم کوي او دافغانستان ددې غونډې ریاست یې هم کاوه، دبهرنیو چارو وزیرمککولې دافغانستان ګډ حکومت یو کمزوری او له فساده ډک وباله او دایې دسولې په نه اعادې تضعیف کړ.

د نیوزیلنډې رسنۍ (nzherald.co.nz) د راپور له مخې، د دغه هیواد د بهرنیو چارو وزیر مورې مککولي، په داسي حال کې چې هیواد یې د دوهمې دورې لپاره د امنیت شورا مشري کوي، او دافغانستان په اړه د۱۵/۹/۲۰۱۶



شپې د غونډې ریاست یې هم په غاړه درلود، د افغانستان پر حکومت سختې نیوکې وکړې.

مککولي د افغانستان د حکومت پر مشرتابه د انتقاد په ترڅ کې وویل«هغه وخت راغلی چې په دې باب صادقانه خبرې وشي چې ولې په دغه هیواد کې سوله نه راځي.»

د نیوزیلنډ د بهرنیو چارو وزیر له افغانستان سره د خپل هیواد د مالي او پوځي ملاتړ یادونه وکړه، ویې ویل چې ۱۰ کاله ۳۵۰۰ نیوزیلنډي پوځیانو په افغانستان کې خدمت وکړ او ځیني ووژل شول.

ده زیاته کړه، په تېرو ۱۵ کلونو کې د نړیوالې ټولنې له پراخ ملاتړ سره سره لا هم په افغانستان کې د سولې ځرک د دې لپاره نه لګېږي چې حکومتولي پکې کمزورې ده.

مککولي وویل «دوه کاله وړاندې د ملي یووالي د نوي حکومت جوړېدا له شخصي- ګټو او فساده د افغانستان د پاکولو لپاره نوې هیلې وغوړولې. خو موږ اوس څه وینو؟»

ده د ملي یووالي حکومت په انتخاباتي نظام کې د اصلاحاتو په راوستلو او د ولسي جرګې دانتخاباتو په ترسره کولو کې ناکام وباله، ویې ویل چې دا د افغانستان د اوسني حکومت مشروعیت زیانمنوي.

د نیوزیلنډ (nzherald.co.nz) نه دي ویلي چې د منځني ختیځ د کوم هیواد استازو د مککولي د څرګندونو مخالفت وکړ او یا یې دقیقاً څه وویل.

نیوزیلنډي پوځیان له افغانستانه تر وتلو مخکې په بامیان ولایت کې دېره ول.

نورداسې ډېر امثال شته، چې له ورایه ترې دکابل داوسنی اداري دحکومتولی ضعف او ناکامې معلومېږي او داسې اشارې ورکوي، چې نور غربیان دکابل داوسني حکومت په ملاتړ پښیمانه او نه غواړي چې تر آخرې سلګی پورې ورسره اوږه په اوږه ودریږي ،نور ددې وخت رارسیدلی، چې یا خو دکابل اداره دخپلې کامیابي حکومتولی

چاره وکړي او نړیوالو ته وښايي، چې دوئ کولای شي، چې هیواد کې یوه سالمه او له فساداتو پاکه اداره رامینځ ته کړي او یا داچې خپل باداران او مرستنویان ترې لاس په سر شي او نور یې دافغانانوتبرګي ته پریږدي ،چې هغوئ دخپلې خوښې سره سم جوړ کړي .

**دحضرت سلمان فارسي رضی الله عنه غوره وېناوې**

۱ ــ دهرښه کار په پیل کې ناشونی وي.
۲ ــ دانسان ستر دښمن دهغه ګناه ده.
۳ ــ دچا علم چې له ماڅخه کم وي زړه مې پرې درد کوي اوچې دډېر علم خاوند وي کینه مې ورته په زړه کې نه راځي.




# په هیـواد کې

## دتعصب اور ته لمن څوک وهي؟!!

**دعابدلیکنه**

په افغانستان کې لـه اشغاله درازېږېـدلو ناخوالوپه لړکې يـوهم دسـمتي،قومي اوژبـني تعصب مهلک وايروس راپيداکېـدل دي چې دډېرو نورو نادودو په څېر اشغال ورته ډېر کار کـوي اوپـه دې وروسـتيوکې يـې خـورا وده اوپراختياموندلې.

نـېواکگر تـل خپلـو موخـو تـه درسـېدو لپـاره لـه ډول ډول ناوړوکـارونو، ظلمونـو، نـارواوو او وحشـتونو څخـه كـار اخـلي، اوپـه تدريج سره خپلې حربې کاروي.

داچې پـه افغانسـتان کـې ددوی دهيلـو خـلاف دتجـاوز اونېـواک بـې سـارې زور اوځـواک کارنـده ثابـت نـه شـواوډېرې نـورې حربې يې هم ناکامې شوې، دوروستي حربې په ډول يې په هيوادکې دسمتي، قومي اوژبني تعصب درامنځته کولو لپـاره پـه پراخـه پيمانـه كـاروکړ او آن چې حکومـت پـه مـنځ ددوه ځايه کولو ناتراشه هم له همدې نمته وه .

ترڅو دغـه تضاد ښـه ډېـره وده وکـړي اورسمي بڼه اختيارکړي، چې همداسې وشـول او خبره له "افغانيته" دوتو ترحده ورسېده .

اشغالگر په خپلومغلوبو هيڅ ډول ترحم نه لـري اونـه هـم خپلـو موخوتـه درسـېدو پـه لارکې کوم اصل اوقانون ته ژمن وي .

چې هرڅومره دافغانستان ټولنه پـه دغـو تضـادونو شـيندلې اوبـې ثباتـه وي همـدومره ددوی هيلې اوموخې تضمينيږي .

دهيـواد ثبـات، اسـتقلال، وحـدت، پرمختگ اوامن هغه څه دي چې دوی پکې پـه هـيڅ صـورت خپـل هـدف تـه نـه شي رسـېدلای، خـو خپلـو دغـو ناپاکوهيلوتـه دهمدې پـاکو نومونـو پـه زبـاني گـردان ځـان رسوي .

په افغانستان کې امريکااوناټو داشغال له پيله خپل پلانونه دتېرجهاد دناخلفو اواجيـرو پـه لاس پـلي كـړي اودادی داخـل يـې ددې مهلـک مـرض ( تعصـب ) دخپرولـو لپـاره بيـا اجيره ټلواله ترمخ کړې چې په ډېره بې شرمـی او سـپين سـترگی دنفرتونـو اوتفرقـې پروسـه پرمخ بيايي .

هغـوی چـې دحبيـب الله كلكـاني او احمدشاه مسعود دمړينې تلين پـه كـوم زور، بدمعاشی، اوبداخلاقی ولمانځه ټول هغـه څـه و چې ترشايې دلوی لالا شاټپونه ښکارېده اودهغوی په متو يې داغورځې پرځې جوړې وې.

سبابه دافغانستان دتجزيې غوښتنه هـم همداسـې كـيـږي اوهمـدا بـاداران بـه يـې پرغوښتنه غـور اورسـمي كـول ترغـور لانـدي نيسي، دوی خو دغه شنه ځراغونه وينـي چـې داشور اوځوږ يې جـوړدی، ولـې نـه پـوهيږي چې څه ډول دبېلابېلو تعصبونو درامنځته کولو لپـاره اسـتخدام دي، همـدا لامـل دی چـې اجيرېې تراجراپېې ورساوه اوپـه ډېـره سـپين

سـترگی يـې ددنيـا دټولـو نورمونـو خـلاف يوحکومت په منځ ورته دوه ځايه کړ، هـدف يوائې د ټلوالې خوشحاله کـول نـه و، بلکـې دخپلو دغه ډول پلانونو دعملي کولو لپاره يې تردې ځايه راورسول چې دادی نن کابـل بيـا دنويموکلونو دوحشتونوبېلگې وليدې .

خـوارکی غنـی خـوښ دی چـې ولسمشـر!! دی او لـه نړيوالـو سره يـې امنيتـي تړونونه لاسليک دي!! خبر نه دی چې همدې دوستانو په كوردننـه ورتـه دتفرقـې او نفرتونـو پټ پلانونـه طرحه كـړي او تـرده پـه وفـادارو بربڼو يې عملي کوي .

خـبره بېرتـه دهيـواد بـادرده علـماوو، طالبـانو اومجاهدينوتـه ورلـه غـاړې ده چـې دهمـدې بلامـخ تـه بـه ولاړوي او دخپلـو معصـومو وينـو پـه قيمـت بـه ددغـو دسيسـو مخنيوی کـوي، هغـوی تـه خـدای كـړي دي! چې قرباني ورکړي،کړاوونه وزغمي، زندانونـه ومني اوهجرتونه وكړي، له الله تعالی پرتـه يـې له هيچا داحسان اوبـدلې تمـه نـه لـري اولکـه څنگه يې چې داشغال له پيله دې مبارزې تـه په همدې نيت اوږه ورکـړې دبـري ترپولو بـه يـې پـه دغـه راز فـداكاريو اوايثـار رسـوي ان شاءالله، دابه بيا وخت ثابته کـړي چـې دهيـواد سـاتونکي څـوک اوداشـغال پـه خـدمت كـې پردي پال څوک وو ؟!!

# د طالبانو نوی بدلون

## د اټکلونو او حقايقو په رڼا کې ...!

ليکوال: موسی فرهاد ۲۰۱۵-۹-۱

-- اټکل داسي ؤ چې طالبان به د خپل ستر مشر اميرالمؤمنين ملامحمدعمر مجاهد له وفات نه وروسته ، نه يوازي داچې کمزوري شي ، بلکي په بيلابيلو ډلو به وويشل شي ، د تنظيمونو په څير به پخپل منځي جګړو اخته شي .

-- داسي ګمان کيده چې طالبان به نور خپل هغه يووالی او وحدت چې د بنيان مرصوص په شان سره تړلي ؤ ؛ له لاسه ورکړي او په يوه خونړي تفرق کې به را ايسار شي .

-- دا انګيرنه هم وه چې طالبان به نور تر هغه هدف تيريږي چې پوره ۲۲کاله يې د هغه لپاره بې شمېره تاريخي قربانۍ ورکړي وي ، او د نورو تش په نوم جهادي احزابو غوندي به د امريکايي ټلوالي بندګي پيل کړي .

-- ډيرو کتونکو فکر کاوه چې د طالبانو نهضت يوازي د ملامحمدعمر مجاهد له ژوند سره تړلی دی ، هغوی کومه فکري انګيزه نلري چې د خپل زعيم په نه شتون کي دي هم هغه ته وفادار پاتي شي .

-- د ځينو اټکل دا وو چې د طالبانو عام جنګيالي به د خپل مشر د وفات د خبر له امله ، د جهاد روحيه له لاسه ورکړي ، بيا به يې هيڅ يو مشر ونه توانيږي چې د مجاهدينو صفونه له سره تنظيم ، او د بهرنيو اشغالګرو په وړاندي يې په پياوړي ډول رهبري کړي .

-- د يو شمير وګړو نظر دا ؤ چې طالبان نور په سياسي لحاظ هغسي خپلواک او مستقل نشي پاتيدلای ، لکه څنګه چې ملامحمدعمر مجاهد پخپل ژوند کې د يو خپلواک او مستقل مزاجه رهبر په توګه ځان د تاريخ په پاڼو کي ثبت کړ ، ترهرڅه تېر ، خو تر استقلال ، ملي او اسلامي نواميسو يو قدم تير نه شو .

-- د کابل ناوسه اداري او د هغوی غربي ميديا په دې هيله وه چې طالبان به دوی ته موقع ورکړي چې د ناوړه تبليغاتو له لاري په هغوی کې درزونه رامنځ ته کړي ، او په طالبانو کې د ځينو کمزورو کړيو له اجتهادي تيروتني او ناسمي پريکړې څخه په استفادې يې غوښتل چې د مجاهدينو حيثيت مجروح کړي . د دې کار لپاره يې د پراخ تبليغاتي کمپاين تابيا نيولي وه .

-- ځيني کتونکي په دې اند وو چې طالبان به اوس د نورو د لاس آله وي ، په افغانستان کې به پريکړې د پرديو د فرمايشونو پر بنسټ کوي ، د ملي او اسلامي مصالحو د تحفظ پاليسۍ به هغوی نور تر شا پريږدي .

رښتيا خبره دا ده چې په دې اټکلونو کې د طالبانو دوښمنان تنها نه وو ، د طالبانو ځيني خواخوږي هم په دې اند وو چې کيدای شي صورتحال نور د طالبانو له کنتروله ووزي ، دوی د دې اټکلونو لپاره څه دلايل هم درلودل ، د مخکنيو تجربو په رڼا کې د هغوی دا اټکلونه تر يو ځايه د منلو وړ هم وو ، که سړي ځير شي زموږ په هيواد کې يو شمېر جهادي تنظيمونه ، همدارنګه په نړۍ کي بلا نهضتونه وجود لري چې له خپله مسيره يې لاره خطا کړي وي . دوی طالبان هم له همغه ليدلوري ارزول چې داعيه او هدف يې سره بيل وي . مګر حقيقت داسی نه ؤ . دا ځکه چې د دوو لسيزو په جريان کې موږ او تاسو وليدل

چې طالبان له ډېرو سترو ازمويښتونو سره مخ شول ، هر ډول نامساعد شرايط يې وزغمل ، خو بيا يې هم په ملي او نړيواله سطحه خپل معنوي هويت ژوندی وساته .

نور به هرڅه پر خپل ځای پرېږدو ، فقط دغو وروستيو بدلونونو ته به يو ځغلند نظر وکړو چې طالبانو د ستر امير له وفات نه وروسته ، د خلکو د اټکلونو خلاف ، کوم مثبت کارونه انجام کړل :

۱ - حقيقت دا دی چې د وخت او حالاتو د حساسيت په درک کولو سره د طالبانو مشرتابه په دې وتوانيدل چې په کور دننه کې د لويو اختلافاتو مخه ونيسي ، د لومړي اټکل برعکس يې خپل صف له کمزوري کيدلو وساته ، د جدا کيدلو پرځای يې د صف جنگيالي نور هم متحد او مضبوط کړل . او دا خطرونه يې د نوي زعامت په مناسب او عاجل انتخاب سره دفع کړل . که څه هم ځينې وګړي تراوسه هم ملاحظات لري ، ولې د حل لپاره يې د ذبيح الله مجاهد په خبره هڅې رواني او حل ته نژدې شوي دي .

۲ - دويم واقعيت دا دی چې طالبانو د تنظيمونو له ناکامه سياستونو څخه په استفادې ، دا تجربه خپله کړې چې له املە يې لا له وړاندي د خپل منځي بيلتون او جنگ جګړو سد باب کړی . البته په دې کې د طالبانو د مشرتابه د هوښيارتيا ترڅنگ ، دويم ستر عامل يې خپله د طالبانو عقيدوي فکتور دی ، چونکه طالبان يوازې د الله تعالی په لاره کې د دين د حفاظت ، د خپل هيواد د آزادۍ او د ملي نواميسو د ساتنې د عالي هدف لپاره جنگيږي ، نو ځکه يې د قدرت غوښتنې پرسر د جنگ جګړو احتمال له منځه تللی دی .

۳ - دا هم حقيقت دی چې طالبانو په اوسني تحول سره وښودله چې له خپل هدف څخه تيريدونکي څه چې د پخوا په



پرتله يې وفاداري نوره هم شعوري او غښتلې شوې ده . په ۷۲ ساعتونو کې د نوي زعيم د کشالې د حل کولو ترڅنگ د هيواد له گوټ گوټ نه د مجاهدينو د بيعتونو سلسله په چټکۍ سره پيل ول ؛ او سمدستي د دښمن په وړاندې جګړه گرمه ساتل ، د دې څرگندونه کوي چې هغوی څومره خپل هدف ته وفادار دي !؟ د نورو په څير نه دي چې د پيسو او قدرت غوښتنې په موخه له هرڅه نه تير دي .

۴ - طالبانو دا حقيقت هم عملاً ثابت کړ چې ډېره عميقه فکري انگيزه لري د کومې لپاره چې دوی بې ساري قربانۍ ورکوي او هغه فکري انگيزه يې ايماني مسئوليت او د خپلې خاورې آزادي ده ، هغوی ثابته کړه چې د مشرانو او مهمو اشخاصو د وفات ، شهادت او اسارت له کبله يې روحيه هيڅکله کمزوري کيږي نه . بلکې لا يې احساسات پياوړي او د قربانۍ جذبه يې غښتلې کيږي .

۵ - دا چې د خلکو په گمان طالبان نور ، د خپل متوفی أمير رح په څير خپلواک او مستقل نشي پاتيدلای ؛ هغوی به د نورو د گټو لپاره وکارول شي ؛ د طالبانو نوي زعيم مولوي اخترمحمد منصور په خپله لومړۍ وينا کې په دې اړه حقيقت داسې څرگند کړ : رښتيا خبره دا ده چې نن موږ او تاسو ته ډېر ستر امانت را له غاړې شو ، دا به ډېره گرانه وي چې د أميرالمؤمنين رح په څير کردار ولرو ، مگر چونکه د هغه رح د معنوي رهبرۍ په سيوري کې مو ژوند کړی ؛ عهد به کوو چې په هر



قدم کې به پخپل ټول توان سره د امیرالمؤمنین سپیڅلي هدف او خپلواکي تګلاري ته وفادار پاتي کیږو . او په دې لاره کې به له الله تعالی نه مرسته غواړو . خپل جهاد ته به په همغه شکل جریان ورکوو ، ترڅو مو یرغلګر په مکمل ډول شړلي نه وي ، د جعلي سولي او بی مقصده خبرو اترو ته به د پردیو د غوښتنو په آساس هیڅکله اماده نشو . د مولوي منصور صاحب له پورتنیو ټکو نه پوره څرګندیږي چې طالبان به خپل مسیر همغسي تعقیب کړي لکه څنګه چې د امیرالمؤمنین تګلاره وه . هغوی به د ملي مصالحو او اسلامي اصولو څخه هیڅکله ناروا تنزل ونکړي . د خپل هدف په لاره کې به د ملامحمدعمرمجاهدرح په څیر مستقل او خپلواک پاتي شي .

٦ - بل ټکی چې خلکو یې اټکل کاوه چې ګویا بیا به هیڅ یو مشر ونه توانیږي چې د مجاهدینو صفونه له سره تنظیم ، او د بهرنیو اشغالګرو په وړاندي یې په پیاوړي ډول رهبري کړي ؛ د دې ټکي ځواب د طالبانو ویندوی ذبیح الله مجاهد د شرق الأوسط ورځپاڼي د یو سوال په ځواب کې داسې کړیدی :

« دا چې جهادي صف د قربانیو او سرښندنو صف دی ، دلته هره لحظه د قیادت په شمول د شهید کیدلو ، اسیر کیدلو او یا هم په طبیعي مرګ د وفات کیدلو احتمال متوقع وي ، څکه نو د جهادي صف مشرتابه مخکي تر مخکي لا د دې صف د رهبري لپاره تدابیر سنجولي وي ، جهادي صف پر نورو خصوصیاتو او مشخصاتو سربیره د قیادتونو د روزنې او تربیې هم مدرسه ده ، دلته که نن یو مشرشهید کیږي ،یا اسیر کیږي او یا هم په خپل طبیعي مرګ وفات کیږي مجاهدین د دې واقعې په راتلو نه کمزوري کیږي او نه د کمزورتیا احساس کوي ، څکه هغوی ته لا وړاندې په فکري لحاظ دا ورتلقین شوي وي چې د جهادي لارې تداوم په شخصیاتو او افرادو پوري نه وي ترلی ، بلکې د هغې تداوم او وابستګي په افکارو او مبادئو پوري وي .

همدا لامل دی چې د امیر المؤمنین په وفات سره په مجاهدینو کې د هیڅ کمزورۍ احساس نه کیږي ، بلکې د هغه له پیل کړي لارې سره د وفادارۍ له امله لا په داډه او ځواکمن شکل د خارجي یرغلګرو او د هغوی د ملاتړو پرخلاف خپل جهاد ته ادامه ورکوي.

د دې ترڅنګ د اسلامي امارت نوی زعیم محترم منصور صاحب هم یو تجربه شوی او خورا بریالی مشر پاتې شوی، مرحوم امیرالمؤمنین پرې اعتماد درلود، په عملی میدان کې یې جهادي صف په سختو شرائطو کې رهبري کړی، اوس یې د ځان لپاه خورا قوي او با رسوخه، په دین پوه مرستیالان هم ټاکلي، قوي رهبري شورا چې ټول اهل خبره اشخاص او د اسلامي امارت د سر خلک په کې عضویت لري ؛ دا هم ورسره ده، نو امید لرو چې تر پخوا به د اسلامي امارت وحدت لا ډیر ټینګ وساتل شي او تر پخوا به لا ډیر په قوت کې زموږ موجودیت ثابت شي ان شاءالله. »

٧ - دا هم حقیقت دی چې طالبانو په پورتنیو مثبتو کړنو سره ، د غربي رسنیو تبلیغاتي کمپاین په ډیر حکیمانه او غیر متوقع ډول سره په نطفه کې خونسا کړ . هغوی ته یې موقع ورنکړه چې د طالبانو ترمنځ د ناروا تبلیغاتو په مټ درزونه رامنځ ته کړي . برعکس د کابل اداره د پرلپسې نظامي او سیاسي شکستونو له کبله ، له غټې سرګردانۍ او ژوري پریشانۍ سره مخ شوي ښکاري .

پای...!!!

# ولس له طالب سره دی

غزنوي

د افغانستان غیور، غیرتي، ویاړلی، پتمن او سربښندونکی ولس یو داسې ولس دی، چې همېشه یې د مسلمه امت د سوکالۍ او ارامۍ لپاره متې را بډ وهلي دي او هم یې د هغو ډلو ملاتړ کړی، چې د مسلمه امت د سوکالۍ او ارامۍ هڅې کوي.

که د افغانستان زرین تاریخ را وپلټو، پوه به شو چې زمونږ سربښندونکي او باتور ولس له چا څخه ملاتړ او له چا سره یې دښمني اعلان کړې ده؟

تاریخ گواه دی چې زمونږ د پښتنو ستر ویاړلی، مدبر، پتمن او مجاهد نیکه (میرویس ) رحمه الله د خپلو کلیوالو او قومي مشرانو په ملاتړ د اېراني گرگین پر خلاف د حی علی الجهاد چیغه پورته کړه او له هغوی څخه یې سپیڅلې او د تاریخ په زړه کې تلپاتې ازادي واخیسته.

تاریخ شاهد دی چې سلطان محمود غزنوي رحمه الله هم د خپل ولس په ملاتړ، خپله اسلامي او جهادي مفکوره ان تر هندوستانه پورې ورسوله،نوموړي ته د ولس له خوا سیف الدولة، یمین الدولة، امین الملة او بت شکن القاب ورکړل شوي دي،چې د نوموړي سره د ولس مینه اوملاتړ ثابتوي.

څرگند حقیقت دی چې د حق پالونکې ډلې په وړاندې به شیطاني ډله ولاړه وي، نن د طالبانو د اسلامي امارت په وړاندې هم کافر او ډیموکرات دولت ولاړ دی، چې د حق او باطل جگړه یې بللی شو.

ننني حالات مو په خپله ولیدل او لا یې وینو؛ کله چې زمونږ په هېواد کې پاټکونه جوړ شول، هلکان ښکته کېدل، هلکان ودېدل، ښځې تښتول کېدې او نور نا ویلي ظلمونه او وحشتونه رامنځته شول، نو د دغې خاورې یو بل باتور، د سیاست او خلافت مجدد، امام المجاهدین، بت شکن، امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله د دغو وحشتونو او ظلمونو د له منځه وړلو لپاره، له خپلې خرې حجرې څخه د څو تنو طالبانو په ملاتړ را پاڅېدو او د دغو وحشتونو پر خلاف یې تېره او گړندی اقدام وکړ، د دغو وحشتونو او جنایتونو مرتکب خلک یې له منځه یووړل او خپل ولس ته یې ارامي او سکون وبښل.

دغه شخصیت ته، چې د ستایلو لپاره یې الفاظ نه لرم، د سلگونه علماوو له خوا په یوه ستره غونډه کې د امیرالمؤمنن لقب ورکړل شو او د بیعت لپاره ورته د هېواد او نړۍ علماوو، مجاهدینو او عامو مسلمانانو لاسونه اوږده کړل.

نوموړي په افغانستان باندې پنځه کاله داسې حکومت وکړ، چې د ده رحمه الله دغې حکومتولۍ ته، د ده رحمه الله دوست او دښمن دواړه گوته په غاښ دي.

خو کله چې د نوموړي رحمه الله پاک اسلامي حکومت د امریکایي اشغال له خوا ړنگ شو، نو ده رحمه الله غرونو ته پناه یووړه او له هغه ځایه یې د خپل ولس د ارامتیا لپاره، د کلاشنکوف په مټ د امریکایي اشغال پر خلاف جهاد پیل کړ.

دغه جهاد د نوموړي د وفات څخه وروسته هم د ده په صف کې روزل شویو مجاهدینو جاري ساتلی، د نوموړي ځای ناستی امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله وو، نوموړي هم د خپل خلف په څېر پر ولس ډېر پام کاوو او د ده تر واک لاندې سیمو کې یې با امنه اسلامي نظام راوستی وو.

د امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور له شهادت څخه وروسته، امیرالمؤمنین شیخ هبة الله اخندزاده حفظه الله د دې اسلام پالې ډلې واگې په لاس کې اخیستې دي او د خپلو سلفو په نقش قدم پل بردي او له ولس سره یې خواخوږي له ورایه څرگندیږي.

نو چې طالب له ولس سره دی او د اسلامي نظام د حاکمیت او د ولس د ارامښت لپاره یې ټوپک پر اوږه کړی او د اسلام او ولس پر مخالفینو یې د قیامت ورځ جوړه کړې، او د دوی د ختمولو لپاره یې مهم مهم، ستر ستر تخنیکگر او د لوړ استعداد خاوندان په دنده گومارلي دي، تر څو د امریکایي اشغالگرو او د هغوی د غلامانو مراکز په نښه او فدایي ځوانان ورته تیار کړي، د هغوی بېخ او ریښه له منځه یوسي؛ لازمه خبر ده، چې ولس به هم له طالب څخه ملاتړ کوي.

# له سیګار یې واورئ!!

**لطیف عزم**

دافغانستان پاک حریم ته دامریکایانو له ننولو اواشغال سره سم دنوروبدنامیواوپیغورونو سره یوځای دافغانستان له نوم سره دشرم اوخجالت داروستاړی هم ښه په شد او مد یوځای اووتړل شوه چې نوموړی هیواد دنړی په کچه داداری فساد ځاله اوترډوسپوړمو یو ککړ هیواد دی ، خو دفساد دغه درجه به کله دریم اوکله څلورم هیواد ورسیده ، تمه داوه چې امریکایان به دخپل شرم او حیثت له امله هم کوشش وباسي چې افغانستان دمفسدو هیوادونو له کتاره په تدریجي ډول وباسي اولړ ترلره یې په ۲۰۱٦ او ۲۰۱۷ کې درجه پنځم او شپږم ته ورسوي ، ولې د۲۰۱٦ کال ارقام او څیړني دادي چې افغانستان دمفسدو رژیمونو او هیوادونو لمړی درجی ته پورته شوی !!

امریکایي اداره ( سیګار ) دخپلو پلټونو او څیړنو په رڼا کې موندلي چې دکابل اوسنی اداره دنړی له بل هررژیم او هیواد څخه په فساد ، درغلیو اولاقانونیت کې ډوبه او ساری په ټوله دنیا کې نه لیدل کیږي

سیګار په صراحت وایي چې امریکایانو نه داچې دکابل اداري د فساد مخه ډب نکړای شوه ، بلکې په لوی لاس یې هڅه کړي ترڅو افغانستان له دغه بد حالت او سرنوشت څخه نجات اوخلاصون پیدانکړي !

جان ساپکو ، چې دسیګار اداري مشر دی تیره اونی یې د( نړیوالي سولي ) په کنفرانس کې چې په واشنګټن کې جوړ شوی وو ،دافغانستان په روان وضعیت کلکه اندیښنه څرګنده کړه وی ویل : په دې سربیره چې امریکایانو اونړیوالي ټولني دافغانانو امنیت خوندي نکړای شو او نامعلومی جګړي یې دارام او پرمختګ خوبونه له منځه وړي ،په هغو سربیره فساد او لاقانونیت هغه تراژیدی او بلاوي دي چې افغانان یې له یونیمي لسیزي راهیسي له مری کلک نیولی ګام په ګام یې ځوروي او لوټي یې .

ساپکو ، نوموړي کنفرانس ته په خپلو خبرو کې ویلي : افغانستان سره دامریکا ددفاع ، بهرنیوچارو وزارتونو او هم دانکشافي اداري له لوري په ملیاردونو ډالر مرسته شوي او که په ریښتیا هم دومره مرسته له فساد او بدنیتی څخه صفا اوشفافه شوي وای ، نو اوس به افغانستان له چین پرته له بل هرګاونډي هیواد څخه پرمختللي ښه درلوده ، خو امریکایانو دخپلو مرستو په ورکړي کې هیڅ ډول شفافیت په پام کې ونه نیوه هغه چا ته یې قراردادونه اومرستي په لاس کې ورکړي چې هغوئ له دولتی کړیو او دیخوانی ټلوالی له لوړو پوړو چارواکو سره تړاوو درلود اوهغوئ په خورا اسانی له امریکایانو سره هرډول معاملي او ساخت باخت ته غاړه ایښودلی شوه .

دسیګار مشر ویلي : له تیري یوې نیمي لسیزي راهیسي په افغانستان کې له ۲ زرو ډیر امریکایان ووژل شول او په زرګونو نور یې ګوډ مات شول اودامریکایانو په لاس نیږدي دوه تریلیونه ډالر مصرف شول ، خونه په افغانستان کې امن راغی او نه فساد له منځه یوړل شو ، ستره وجه یې داوه چې خپله امریکایانو دیته متعهد او چمتو نه وو چې په افغانستان کې دي جګړه ودریږي او یو باثباته او دافغانانونو په خوښه دولت دي رامنځته راشي.

■ خبیر م

# دبریاوو تسلسل !!



دعمري عملیاتو دروانو فتوحاتو په لړ کې څو ورځې وړاندې داسلام سربکفه سپاهیانو دلویې پکتیا اړونده ( جاني خیلو ) ولسوالی له څو ورځنی محاصرې اومسلسلو بریدونو ورسته دمتعال رب ( جل جلاله ) په خاص نصرت وکولای شول چې دغلام دښمن څخه دغه ستراتیژیکه ولسوالی اوددوئ مهمه پوځي ځاله فتحه او هلته داسلامي امارت نجات بښونکی سپین بیرغ ورپوې.

دجانیخیلو ولسوالی ددفاع اوساتلو په برخه کې دښمن خپل ټول زور اووحشت وازمایه ، له کابل او گردیز څخه دمزدور رژیم مرستندویه قواوو څو ځله هڅه وکړه اوپراخ تعرضونه یې په کار واچول چې جانیخیل وژغوري اومحاصره یې ماته کړي ، خو هرځل ورته مجاهدینو دسرپه کاسه کې اوبه ورکړې ،درانه تلفات او زیانونه یې درواړول اوقواووې به یې گوډ اوماتي بیرته دگردیز په لور وتښتیدلې.

چې بالاخره دالله تعالی په ځانگړې مرستې اودولس په لویې همکارۍ دجانیخیلو ولسوالی مرکز له ټولو بیزونو ، غونډونو ، دفاعي کربښو او پوستوسره دمجاهدینوپه لاس فتحه ، ددښمن لسگونه عسکر په خپلو پوستو او مورچو کې مړه پاتي شول ،دغه راز ۱۵ ټانگونه ۱٦ رنجر ، لسگونه میله سپکه او درنه وسله اوهم دمهماتو لوې زیرمې دمجاهدینو لاسته ورغلې .

خو دکابل دجان کیرې اداري ویندویانو او چارواکو دخپل عادت له مخې زیاته هڅه وکړه چې خبري سرچینې دجان خیلوولسوالی دبرخلیک له ویلو او معلومولو څخه راوگرځوي غلط خبري معلومات په لاس کې ورکړي او ورته ووایي چې ولسوالی ددوئ له واکه نده وتلې او په اصطلاح دمفکر تر (مدیرت) لاندې ده

خو حقایق ښکاره اولمر هیڅکله په دوگوتو نه پټیږي ، دولسوالی دفتحې خبر لر اوبرته ورسید ، داسلامي امارت ویښو ویندویانو او هلته موجود مطبوعاتي گروپ په ږومبیولحظو کې په مستند شکل دجانیخیلو دفتحې جریان ټکې په ټکې اوگام په گام له خپل اتل ولس او رسنیو سره شریک کړ

دکابل له شرمیدلي اداري چې نوره لارورکه شوه او عامه ذهنیت یې دیته اماده نشوکړای چې داسلامي امارت داتلو شاځلمیانو په لاس دجانیخلوولسوالي دسقوط په برخه کي شک او تردد ورواچوي ، نو بیا یې ژر داتبلیغات پیل کړل چې دوئ دولسوالی دبیرته نیولو لپاره پراخ عملیات شروع کړي ، مجاهدینوته یې زیانونه اړولي او حتی دپکتیا والي محترم مولوي عبدالکریم یې شهید کړی

خو الله تعالی په دغو اوتو بوتو کې هم ډیرژر خجله او رسوا کړل ، دپکتیا والي په خپل غږ کې مرکه وکړه او ددښمن دغه ټول درواغ یې تس نس کړل ، ضمنا یې دااطمنان هم ولس ته ورکړ چې جانیخیلو کې دمجاهدینو حوصله او مورال لوړ اودولسوالی په ټولو برخو حاکمیت لري

دکابل اداري ، متصدیان او ویندویانو ته وایو : ترڅو اوترکومه به تاسي دزور او زر له لارې کوشش کوی چې واقعیتونه مسخه او په هغوپیښو چې ستاسي پکې ذلت او رسوایي نښتي وي وربانده خاورې واړوي ؟

تاسي خو اوس هم دانه مني چې دهلمند ۹۵ فیصده ځمکه ستاسي له لاسه وتلي ده اوتاسي خوپه نورو حقایقو سربیره دیته هم غاړه نهږدی چې دبغلان ، کندوز ، تخار ، نورستان او ننگرهار ولایتونوکې په همدې دو اونیو کې پنځه ـ شپږ ولسوالی مجاهدینو درنه تصرف کړي ؟

افغان ولس او خپلواکه رسني پوهیږي چې دکوم بري او پوځي لاسته راوړني په اړه مجاهدین څه ووایي هغه هیڅکله بې دلیله او بې مورده نه وي ،یعنې خلک اوعامه اذهان پرې باور کوي او کوم تردد نه ورته پیداکیږي ، علت یې دادی ،چې اسلامي امارت دحقایقو په ویلو او دفاع کې که هغه په تیر دور کې وو اویا اوس روښانه تاریخ او حیثیت لري ، هیڅکله هغه خبره نکوي چې ورته ثابته نه وي او یا واقعیت ونلري.

# بشیر همدرد

## په اسلامي هېوادو کې ولې خوشالي او سوکالي نشته

امیـــر المــؤمنین عمـــر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مسجد ته تلو کې وځنډېد، خلکوته یــې پیغام ولیږه: زه دتن کالیو ایلــه یــوه جوړه لرم ،هغه لمده ده؛چې کله وچــه شي امامت تــه درزم ؛ تاســو ترهغــې انتظار وکړئ!!

سربیــره پــه دې چــې نومــوړی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُدنړۍ د ترټولو لوی ســلطنت واکمـــن و ،د عـــدالت ، ا نصـــاف او د سترې لامثالا تقوی حال یې دادی، چې د بیت المال څخه د خپل بـدل پــوښ لپاره دبلې جوړې اخســتو جرئـت هــم نکوي او په یــوه جــوړه کــالیو صــبر اوقناعت کوي....

نوموړی رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُله الله تعالی نــه دومره زیات ډاریدونکی خلیفه و چې په ژړه غوني غړ یې ویل: که دفــرات په غاړو له لوږې یو سپی هم ومړ له عمــر نــه بــه دهغــه پــه اړه پوښــتنه کېږي....!

کله به یې په زیات تاسف ویــل: که له اســمانه دا غــږ وشــو چــې د یوتن پرته ټول انسانان و ښښل شول زه به دانګیرم چې هغه یوتن زه یم!!

دامیــر المــؤمنین عمــر بــن عبــد العزیز میرمن کوټې ته ننوتــه، ګــوري عمر بن عبد العزیز پــه لمانځــه ولاړدی اوله سترګو یې قطار اوښکې بهېږې ،کله چې د لمانځه نه وزګار شو ،هغې ترې وپوښــتل:ایا کومه د غم پیښه شوې چې ته ژاړې؟ ویلې: ما خلافت قبول کړ،یو درونډ پیټی مې پــه ځــان بار کړ نور زه مسؤل یم چې ددې لوی سلطنت دغریبانو، مسکینانو او بې وزلانــو اړتیــاوې پوره کړم که دیو تن اړتیا مې هم پوره نکړای شوه، په اړه به یې الله تعــالی لــه مــا ځــواب غواړي ! دا بوج( مسؤلیت) هروخت زما په زړه دی او ژړوي مې .

اوس مهال چې په اسلامي هېوادو کې د چارواکو عیاشیو ،مستیو او خرمستیو تــه پــام وکړو نو هغوی دخپلو دغو اسلافو پیروۍ پریښودې او ترې په بلا لار روان دي پــه خاصــه توګه دمسلمانانو بیت المال بیدریغه پــه عیشــونو او نــارواوو لګــوي ،همــدا لامــل دی چــې مسلمانان داغیارو په مقابل کې ورځ تربلې دزلت ، خوارۍ، دربدرۍ او زړه بوږنوونکي حالت سره مخ کېږي .

د اوسنیو عیاشو چارواکو په پیروۍ کولو دمسلمانانو شتمن او بډای خلک هم حتی هغه دیني ګوندونه او حرکتونه چې اسلامي اهداف تبلیغوي او اسلامي مبارزین ګڼل کېږي هم په دې باب ډېر مثالي کردار نلري هغوی هم دبیت المال سره هغسې چې پکارده احتیاط نکوي ،د عربي ژبې متل دی: خلک دخپلو پاچاپانو په دین وي؛ یعنې هغــوی دواکمنــو لــه کــړو وړو پیروي کوي،واکمن چې په کوم لور ګام اخلي خلــک ورسره ســم پــه هغــه خــوا درومــي او دهغوی د کردار او ګفتار دواړو نقالي کوي. نن ورځ چې داسلامي هېــوادو واکمــن عیاشــې، فضول خرڅې، اسراف او... داسلامي هېــوادو د واکمنــو مــزاج ګرځیــدلیی شــتمن او بــډای مسلمانان هم پکې وروسته ندي دهغوی پیښې دوی هم کوي....

په مقابل کې که غربي چارواکوته پام وګرځوو هلته ترډېره ځایه واکمن دخپلو ملي شتمنیو ساتنې او خوندي کولو ته دومره متوجه دي، چې ځیني یې په ځانو ســختې تیــروي خو د دولتي پیسو دبې ځایه مصرفو لو او داسراف نه ځانونه ساتي چې له دې پلوه په هغوی کې دځینو چارواکو کردار او کره وړه یقیناً دستاینې وړدي چې د ساده ګۍ پــه لبــاس کــې دخپل هېواد او خلکو خدمت ته یې ملا وې تړلې ددې لپــاره چــې درانــه لوســتونکې زمــونږ دادعوه رښتیا وبولي دلته په دې اړه څومثالونه راوړو:

لندن: دلندن ښاروال خپل دفتر ته یواځې ځي، هیڅوک یې هرکلي ته نه وي ولاړ،هغه د خپلو کالیو او ضرروي څېزونو بکس پخپله وړي، ،ور سره نه څوک ملازم مل وي، اونه کوم ساتونکی ؛د عامو سورلیو په ریل ګاډو کې سفر کوي ، ترې مخکې او وروسته شــنه او سره

چراغان لرونکي موټران نه ځغلي ، دریل ګاډو په تم ځای کې چې ښکته شي دنورو مسافرو په ګڼه ګوڼه کې ورګډ شي، هرسړی ورته له سفارش او واسطې پرته خپل مشکل وايي، په ښار کې دعامو وګړو په څیر ګرځي او په عام هوټلونو کې چای څکي او دخلکو ستونزې اوري.

یوګورای:

دلا طینې امریکا یو هېواد یوراګوی نومېږي دغه هېوا د ولسمشر خوزې موخیکا داسې سیاستوال دی چې د ولسمشرۍ په مانۍ کې له استوګنې انکار کړی او خپل کور غوره ګڼي ، هلته دکوم ملازم اوساتونکي پرته اوسي، دکالیو وینځلو ځای يې له کوره بیرون دی، موخیکا یوه ټوټه زمکه لري، په هغه کې هغه او میرمن یې داودي ګلان کري اوپري خپله ګذاره کوي.په هغه یوشمیر خلک نیوکه کوي چې دولسمشر په توګه ورته دغه ډول ژوند مناسب ندی خو دډېرو نورو په نظر کې هغه یو قهرمان دی...

هند:دهند دتریپورا ایالت اعلا وزیر مانګ سرکار چې دکمونست ګوند غړی دی دهند ترټولو غریب واکمن دی، هغه له تیرو پینځلس کلو را پدیخوا قدرت په لاس کې لري خو دخپل شخصي موټر او کور څښتن ندی ؛ هغه خپل ټول معاش دګوند په خزانه کې جمعه کوي او بیا دګوند لخوا ور ته پنځه زره هندي روپۍ ورکول کېږي چې په هغو دخپل کور لګښتونه پوره کوي.

امریکا:دامریکا دسټیفنرډ پوهنتون فروفیسر ډیوډ چیریټون چې تخمیناً د درې ملیارد ډالرو خاوند دی په ۱۹۸٦ماډل والکس موټر کې ګرځي او اوس هم پخپل ۳۰کلن پخواني کور کې ژوند کوي.دفیس بک جوړونکی چې ceoمارک زکرک برګ چې د ۳۲.۴ یعنې د۳۲۴۰ ملیارد ه کلدارو په انداز ه سرمایه لري نن هم د دیرش زره ډالرو په بیه مو ټر کې ګرځي ceoټم کک چې ۴سوه ملیونه ډالرو په اندازه سرمایه لري په یوه کوچني کور کې اوسي هغه وايي: ځانته دا وریادوم چې خپل اصلیت له یاده ونه باسي. او پیسې ورته کوم اهمیت نلري دګوګل له جوړونکو څخه یو تن( سرجي) چې ۳۰.۹ ملیارد ډالرسرمایه لري وايي: له کوچنیوالي ورته مور اوپلار داسې روزنه ورکړې چې په هر حار کې دخوشالی او دسپما سره روږدی یم، هغه وايي: زه دخوړو لوښی ښه صاف کوم. کله چې کوم څېز په بازار کې اخلم اول دهغه بیه معلوم او بیا ښه سوچ کوم او پیسې پرې لګوم. اوکه په خیریه کارونو کې دپیسو مصرفولو وخت وي هلته بیا کنجوسې نکوم او په خلاص لاس پیسې لګوم

پورتني مثالونه دهغه چا دي چې هغوی په اسلام باور او ایمان نلري خو ددې سربیره بیاهم په عیاشی ساده ګي ته ترجیح ورکوي ، ځکه دا دفطرت غوښتنه ده بل پلوته مونږ ته زمونږ دین ( اسلام) دساده ګی ښودنه کوي چې دا داسلام ترټولو لویه ځانګړتیاده چې مسلمانانو ته دساده ژوند بلنه ورکوي هرښه کار چې له بره څخه شروع شي یعنې دواکمنو او سرمایه لرونکو لخوا پیل شي په عامو وګړو يې هم تاثیرمثبت وي اوس ستم دادی چې څومره اسلامي هېوادونه دي په هغو کې دهیڅ هېواد واکمن ساده ګې نه غوره کوي برعکس هره ورځ دخپلو عیاشیو او مستیو په توکو اوسبابو کې زیاتونه کوي نن داسلامي هېوادو دوزیرانو لګښتونه او تشریفات له پاچایانو ور اوښتي ، په هر خوا چې درومې ورسره بسته لښکر کوچ کوي او بل لورته دغربي هېوادو چارواکې چې کله دیوښار نه بل ښارته سفر کوي نو په ساده ګې سره درومې دخلکو په وړاندې سفر کوی هیڅکله دساتونکو دکاروان په سیوري کې نه ځي کوښښ کړي چې ترخلکو ځان ورسوي او مشکلات له نژدې واري او دا وجه ده چې دهغو هېوادو دننه خوشالې اوسوکالې شته خلک یې له خپلو چارواکو راضي دي او ورسره مینه کوي او زمونږ چارواکي او مشران چې ساده ګي نه خوښوي او په عیاشیو، فضول خرڅیو او مستیو مبتلی دي، دمسلمانانو هغه پیسې چې ددوی سره امانت دي په زیات جرئت سره بیدریغه مصرفوي ځانوته ، اولادوته او میرمنوته لوکس او ګرانبیه موټر او کورونه اخلي دنړۍ په ګرانبیه تعلیمي ادارو کې دخپلو اولادونو په روزلو دبیت المال پیسې لګوي او نور قسماقسم بې لارۍ او لوچکیانې پرې کوي خلک هم تري نفرت او کرکه کوي او شپه ورځ ورته ازار او ښیرې کوي دغه وجه ده چې اسلامي هېوادوته خوشالې او سوکالې نه راځي....

# دغربي ښکيلاک په مقابل کې

## رامنځته کېدونکی نوی شرقي اتحاد

حسن مومند

دا رښتيا ده چې د سوړ جنګ په زمانه کې شوروي اتحاد په نړۍ کې يواځنی هغه ځواک و چې دامريکا سره يې مقابله کولای شوه؛دا هم يقيني وه چې شوروي اتحادبه په کوم ځای کې قدمونه کېښودل بيابه يې دهغه ځای نه دوتلو نوم نه اخستلو اونه به دچا زړه ته پرېوتله چې ګينې يو وخت به داسې هم راشي چې روسان له دې ځای نه ووځي.

دشوروي اتحا د دهمدې وېرونکې څېرې نه امريکا ښه ډېره ګټه پورته کړه او په نړۍ کې يې شوروي اتحادداسې معرفي کړ لکه چې ټوله دنيا او خصوصاً اسلامي نړۍ له ستوني تېرول غواړي او ګواکې ددې توان هم لري چې ټوله اسلامي نړۍ له ستوني تېره کړي حال دا چې داسې نه وه؛روسانو له منځنۍ آسيا پرته په جنوبي آسيا او منځني ختيځ کې دامريکا او برتانې په پرتله زيات نفوذ غوښتلو اوددې لپاره يې هڅې هم کولې خو په رښتيا داسې نه وه چې ګينې دټولې جنوبي آسيا او منځني ختيځ دقبضه کولو پسې يې متې رانغښتې وې او يايې ګينې په ځان کې دومره زور ليدلو.

هر زبر ځواک چې ناکام شي خلک ورته دحماقت او خرتوب نسبتونه کوي؛دافغانانود جهاد په برکت دروسانو دناکامۍ او بيا دشوروي اتحاد د ټوټه ټوټه کېدو نه پس روسان دلويو خرو او احمقانو په نومونو يادېدل او بايد چې پرې ياد شوي واي ځکه چې افغانانو دهيچا استعمار ندی منلی؛ افغانستان داستعمارګرو هديره ده او دلته هر استعمارګر په ګونډو شويدی نو دافغانانو له تاريخ نه سترګې پټول ؛ بې موجبه پرې حمله کول اوددې خاورې دقبضې خوبونه ليدل رښتيا هم لوی حماقت اوخرتوب و خوددې حماقت ارتکاب يواځې روسانو ندی کړی بلکې پدې حماقت کې امريکا او اتحا ديان يې له روسانو ډېر وړاندې تللي دي.

کله چې روسانو ټوله منځنۍ آسيا ونيوله دا يې د ډېر زور زمانه وه، په خپل زور مغرورو روسانو بايد په هماغو روځو کې پر افغانستان يرغل کړی وای خو روسانو دافغانستان په اړه دهيڅ قسمه عجلې نه کار وانخست له نيمې پېړۍ نه يې هم زيات انتظار وکړ؛ افغانستان ته يې ددوستۍ لاسونه را اوږده کړل ؛ افغانستان سره يې مرستې وکړې ؛ دلته يې ګڼې انکشافي پروژې تطبيق کړې ددې پروژو دتطبيق لپاره يې په سلسله وار ډول ګڼ روسان

راواستول ؛ افغانستان ته يې دډېروزيـاتوتعليمي برســونو ورکولولړۍ پيل کړه او لــه همــدې لارې يــې پــه باســواده ځوانانوکې خپل کرغېړن افکار خپاره کړل .

سره له دې چې روسانوپه افغانستان کــې خپـل ډېــر پلويان پيداکړي وو خوبيا يې هم افغانستان ته دراتللــوزړه نه ښه کاوه او په افغانستان يې ايله هغه مهال يرغـل وکـړ چې پلويانو يې دداودخان مضبوط حکومت ړنــګ کــړی او ټول افغانستان  يې ترخپل واک لاندې راوستی و.

لنډه داچې پرافغانستان  دروسانو يرغـل حتمــي و او دايې خپله لويه اړتيا ګڼله خو رښتيا دا ده چــي روســانوپر افغانستان ديرغل په اړه له عجلت نــه کـار نــه و اخســتی؛ مناسب صبر يې کړی و او ښه کاميابه پلان ګزاري يې کړی وه.

هو!دروسانو دراتلو نه وړاندې چې پرټول هېواد داسې خلک واکمن شوي وو چې دروسانو بيرغونه يې پورته کړي وو ؛ په ټول افغانستان کې يې کمونستي نظريات خپرول او ددې افکارو دخپرولو په لار کې له سره هم تېر وو داسبابو په نړۍ کې داترډېره حده کاميابه ستراتېژي  وه .

داسمه ده چې دافغانستان عــام مســلمانان دروســانو مخالفين وو او دوئ د کمونستانو او روسانوپرضد قيام هم کړی و خو دوئ چې په بشپړ ډول بی وسلې وو اوديولــوی زبرځواک اومنظم فوځ سره يې دجنګ تجربه يــې هــم نــه درلوده نو د اسبابو په نړۍ کې د روسانو ناکامي ناممکنه ښکارېده دا بيا بېلــه خــبره وه چــې دداخــلي کمونســتانو اوروسانوپه مقابل کې دافغانانوداقيام شرعــي جهــاد و او جهاد خو د مسلمانانو هغه سپڅلی عمل دی چې مقابل کې يې يو زبر ځواک هم  کله ندی  ټينګ شوی او تل ددې حقې لارې مبارزينوته  الله تعالی کاميابي ورپه برخه کړېده.

که دروسانوديرغل برعکس د امريکا يرغـل تــه وکتـل شي نو دا دروسانو په پرتله ډېر ناکام او ډېر بــې پلانــه و، امريکايانو په افغانستان کې هيڅ فکري دوستان نه درلودل ؛ د شمال ټلوالی مشران هم د امريکا فکري پلويان نه بلکــې زرخريد غلامان وو؛ پرافغانستان له يرغل لړه موده وړاندې په پنجشېر کې د دوئ او امريکايانو ترمنځ رامنځته شــوی تړون څه د فکري يووالي پر بنا نه و بلکې په يو څو مليونو ډالرو د وطن پلورنې سودا وه.

د امريکايانو د فکر سره برابر خلک يواځې هماغــه وو کوم چې د اشغال نه پس امريکايــانو لــه امريکــا او نــورو غربي هېوادونو نه راوړل او په لويو پوستونو يې وګومارل.

دا هم ډېره مهمه ده چې امريکاد روســې پــه پرتلــه د سيمې سره نابلده او عسکريې د روسي عسکرو په پرتلــه د مخامخ جنګ ډګر کې ډېر کمزوري وو خو مقابل جانب يې که څه هم د وسلو او جنګي وسايلو په لحاظ کمــزورې وو خو دوئ هماغه د روسانو سره دترسره شوي ســتر جنــګ فاتحان وو او همدوئ د شريرو پاټکيانو نه خپلو هېوادوالو ته ازادي ورکونکي وو.

نولنډه داچې د امريکا حمله د روسانو په پرتله دډېــر لوی حماقت نه ډکه وه او ورسره ډېرې بدې ارادې ملګــری وې خو دا چې د روسانو خپلــې رســنۍ کمــزوری وې او د لويديځ ټولو رسنيو يې پر ضد ښه په منظم شکل تبليغــات کول نو روسان يې د ټولې دنيا او خصوصا اســلامی نــړۍ لپاره د يو ډېر ستر خطر په صفت معرفی کړل چې يو لوی هدف  يې د ټول منځني ختيځ نه د روسانو لاسونه ويســتل وو تر څو پر ټول منځني ختيځ د امريکا قبضــه مضــبوطه شي او د اسرائيلو له لورې د مسلمانانو د سيمو د غصب په

وړاندې ټول خنډونه له منځه ولاړ شي چې پدې کار کې امریکا اونورلویدیځ کامیاب هم شو.

د ۷۰ یمې کلیزې تر اواخرو پورې په جنوبی یمن، شام،عراق،او لیبیا کې د روسانو دومره نفوذ و چې یاد هېوادونه بیخی د روسانو اتحادیان ګڼل کېدل، د عدن بندرګاه کې د روسانو د لوېې سمندري جنګي بېړۍ شتون په منځني ختیځ کې د روسانو د شتون لویه نښه او د اسرائیلو ، امریکا او ټول لویدیځ ګټو ته لوی ګواښ ګڼل کېدلو.

**نو هماغه و چې امریکاړومبی د منځنی ختیځ نه د روسانو د لرې کولو لپاره پلان په کار واچولو او بیا یې په ډېرې مکارۍ د منځني ختیځ د مضبوط اسلامي هېوادونو د تباه کولو پلان عملاً پیل کړ چې شروع یې پر عراق د یرغل نه وکړه ؛ پر عراق د یرغل وخت هغه وخت و چې ترې لږه موده وړاندې روسانو په افغانستان کې خپله ماتی منلې وه ؛ شوروي اتحاد دړې وړې شوی و او تر روسې محدود شوي روسان په خپل هېواد کې خپلو زخمونو ته په ټکور ورکولو مصروف ول اوله بده مرغه چې چین له نړیوالو موضوعاتو نه د ځان لرې ساتلو او خپل اقتصاد ته د ودې ورکولو پالیسی خپله کړه چې په نتیجې کې امریکا ته میدان خالي پاتی شو نو په ډېرې سپین سترګۍ یې په هماغه افغانستان یرغل وکړ چې نېږدې یوه لسیزه وړاندې د روسانو تر اشغال لاندې و.**

**پر افغانستان د یرغل هدف که له یوې خوا دلته سوچه اسلامي حاکمیت له منځه وړل وو نو تر څنګ یې د سیمې د زېرمو قبضه او د چین او روسې په څېر ځواکمنو هېوادونو ته د همېشني ګواښ په صفت دلته د تل لپاره پاتې کېدل و.**

**دابایدومنو چې پر افغانستان د امریکا یرغل له یوې خوا ډېر ناڅاپي و او له بلې خوا ډېر وېرونکی و ځکه چې هم یې له ځانه سره ټوله نړۍ ودروله او هم یې بې حده زیات وېره خپرونکی تبلیغات وکړل نو ځکه د روسانو او چینایانو په شمول هیچا هم نه یوائې دا چې د امریکا ددې ناکاره ارادو په مقابل کې کوم پلان نه درلودلو بلکې برعکس دلته یې ټول هغه څه وکړل چې ترې امریکا غوښتل .**



**امریکا چې په افغانستان کې ډېر ستر ځاني او مالي تلفات ولیدل او د طالبانو په مقابل کې یې هیڅ کامیابي تر لاسه نکړه نو خیر یې پدې کې و چې د ټول عالم اسلام او په ځانګړې ډول د منځني ختیځ په اړه یې په خپلې پالیسۍ کې بدلون راوستی وای او داسې یو اقدام یې هم نه وای کړی چې په مسلمانانو کې د لا زیاتې بدنامۍ او منفور کېدو سبب کېدای خو دامریکا**



**له بد ه مرغه چې د خپلو شیطاني دسیسو نه وانوړېده او داسې ډېر لوی اقدامات یې وکړل چې له امله یې په ټولې نړۍ کې سخته بدنامه او په عالم اسلام کې سخته منفوره شوه .**

د امریکا د پلان او حکم سره سم د ناټو له لورې پر لیبیا یرغل، دلته د یوې منظمې اداري ړنګول، دلته کورنی جنګ رامنځته کول او تجزیې ته یې لاره برابرول ، د دې هېواد د پیاوړی اقتصاد تباه کول او د فقر له کربشې نه هم دلاندې حالت سره یې د ولس مخامخ کول .

همدا راز د افریقا یو ستر اسلامي هېواد سوډان تجزیه کول او د عیسوي باغیانو لپاره پدې هېواد کې د جنوبي سوډان په نوم مستقل او جلا هېواد جوړول .

په مصر کې دوحشي السیسي په لاس د محمد مرسي منتخب دولت ړنګول او دلته تر سره شوي قتل عام کې د السیسی تائید او ورسره مرستې .

همدا راز په برما کې د بودایانو په د لاس د مسلمانانو پر ضد د تاریخي وحشت په اړه د امریکا او نور لویدیځ چوپتیا او د بودایانو د ټول وحشت خاموش تائید.

پر صومالیه بریدونه، په یمن کې د حوثي باغیانو سره پټې مرستې ، په شام کې دجنګ بل کړی شوي اورته

له مختلفو لارو لمن وهل دا ټول هغه څه دي چې امریکا یې د نړۍ د مسلمانانو په منځ کې سخته منفوره کړېده خو د امریکا وروستی دوه اقدامات داسی دي چې امریکا یې په مسلمانانو کې سخته بې اعتماده کړه ؛ عام مسلمانان خو عام مسلمانان دي پر اسلامي هېوادونو مسلط هغه حاکمان چې د امریکا پر دوستۍ به یې فخرکاوه هغوئ هم دې ته اړ شول چې د امریکا سره په دوستۍ بیا له سره غور وکړي.

په دې دوه مهمواقداماتوکې یو دادی چې په ټول منځني ختیځ کې د شیعه او سنی په نوم د اختلافاتو زیاتولو، پدې نوم د یو اوږدخطرناک جنګ رامنځته کولواو پکې د ټول منځني ختیځ د لولپه کولو په موخه امریکا د ایران سره روابط ښه کړل، بندیزونه یې ترې لرې کړل او د کابو ټولو عربي هېوادونو په کورنیو چارو کې مداخلې ته یې وهڅولو چې دې کار د سعودي په شمول د ګڼو عربي هېوادونو او د امریکا پر روابطو منفي اغیزې هم وکړې.

او د ترکې د ناکام بغاوت تر شا د امریکا دلاس شتون دوهم هغه اقدام دی چې امریکا یې ډېره زیاته منفوره او بې اعتماده کړه.

ترکیه د اسلامې نړۍ یواځنی هغه هېواد دی چې په ناټو کې عضویت لري ؛ د امریکا په نېږدې اتحادیانو کې شمېرل کیږی او د هغو درې اسلامي هېوادونو څخه یو دی چې دنورې اسلامي نړۍ برعکس اسرائیل په رسمیت پېژني.

خو چې ترکې باندې له تېرې کابو يوې نيمې لسيزې راهيسې د طيب اردگان د عدل او پرمختگ گوند واکمن دی او پدې زمانه کې ترکې د تمو خلاف ډېر زيات اقتصادي پرمختگ کړی ؛د سيکولرزم بنيادونه پکې کمزوري او اسلام ته پکې د خلکو ميلان ډېر زيات شوی چې امريکا ته دا هيڅ هم د زغم وړاندی نو ځکه يې د ترکې د منتخب دولت پر ضد په شوې او سني بغاوت کې د باغيانو مرسته وکړه چې له امله يې د ترکې او امريکا روابط تر ينگلې هم شول.

په زړه پورې دا ده چې د بغاوت تر شاد امريکا د لاس درلودلو زياتره کره شواهد روسې ترکې ته په لاس ورکړل، هغې روسی چې څه موده د مخه يې پر شام د بمبارۍ په موخه راغلې جنگي طياره ترکې رانسکوره کړې وه چې له امله يې د دواړو هېوادونو اړيکي تر دې حده سختې خرابې شوې وې چې تر منځ يې د جنگ رامنځته کېدووېره هم راپيدا شوی وه.

هغه ترکی پيلوټ چې د روسې طياره يې رانسکوره کړې وه د دولت پر ضد بغاوت کې يې هم مهم رول لوبولی و او د باغيانو په سرکرده تنانو کې شمېرل کېږي ، د روسې طيارې د رانسکورولو پر مهال ديوبل پيلوټ سره دده ټوله مکالمه د روسی جاسوسو شبکو ثبت کړې او طيب اردگان ته يې د بغاوت نه پس وړاندی کړی وه ؛ د مکالمې نه دا روښانه شويده چې د طيارې راغورځول د يو جوړ پلان له مخې شوي و او هدف ترې د ترکې او روسی د روابطو سخت خرابول و .

ترکې او روسې دواړو چې حقايق درک کړل نو د بغاوت نه پس يو بل ته ډېر نېږدې شول ، د روسی مشر- ولاديميرپوتين طيب اردگان ته د بغاوت پر ناکامولو مبارکي وويله او طيب اردگان د بغاوت نه پس تر ټولو ړومبی روسې ته سفر اعلان کړ .

که په غوره وکتل شي نو اوسنی حالت د سوړ جنگ حالت ته ډېر ورته والی لري، فرق همدومره دی چې اوس حدود مختلف دي اوس امريکا د اسلامي نړۍ د تباه کولو تر څنگ د ټولو اقتصادي قوتونو مراکز د خپلی محاصرې لاندې راوستل غواړي چې پر افغانستان د يرغل نه د امريکا دا مقصد ډېر روښانه و .

ديرغل پرمهال موږ دسيمې هېوادونو ته په چغو چغو ويل چې امريکا له ډېرو ناکارو ارادو سره دلته راغلی ده ، موږ بيابيا دسيمې ټولو خلکوته داخبره روښانه کوله چې هدف يواځې موږ او زموږ سوچه اسلامي واکمني نده بلکې زموږ ترڅنگ هدف ټوله سيمه او خصوصاً د سيمې لوی طاقتونه دي خو دسيمی لوی او واړه طاقتونه چې هغه مهال د امريکا له طاقت نه سخت په وېرې کې وو د هيڅ قسمه جرأت نه يې کار وانخست او نه يې ددې خطرناک زبرځواک د شر نه د ځان ساتلو لپاره کوم کوچنی اقدام وکړ ځکه چې د دوۍ نظر يواځې په اسبابو و او يواځې اسبابو ته چې نظر وکړې نو د دې زبرځواک او د اتحاديانو شکست يې رښتياچې ناشونی ونوځکه دسيمې ټول ځواکونه د خير په غونډۍ کېناستل او د مقابلې ډگر کې يې غريب افغانان يواځې پريښودل .

خو دا چې الله تعالی د افغانانو مدد وکړ او نه يواځې دا چې يوه نيمه لسيزه يې د نړۍ د تر ټولو ستر دې زبرځواک پر ضد جنگ جاري وساتلای شو بلکې د تمې وتلي درانده مالي او ځاني تلفات يې هم ورواړول نو ايله د نړۍ د خلکو يقين ته پرېوته چې د امريکا مقابله کېدای شي ؛همدا و چې د سيمې لويو ځواکونو کې ساه وچلېده،

روسې د اوکراین مسئله کې د امریکا د مخالفت څه پروا ونه ساتله ؛ چین د تایوان په ستونزه کې امریکا ته اخطارونه ورکړل اوچین اوروسیه یوبل ته ډېر نېږدې شول.

د امریکا سره شریکې دښمنۍ نه یواځې دا چې چین او روسیه یو بل ته نېږدې کړل بلکې د امریکا په مقابل کې د یو قوي بلاک جوړېدو ته یې هم اړ کړل .

حالاتو ته چې وکتل شي نوداسې ښکاري چې چین او روسې اوس دامریکا په مقابل کې نوی بلاک جوړولو لپاره عملي اقدامات پیل کړیدي دواړه غواړي چې د امریکا په مقابل کې جوړېدونکې بلاک کې ټول مهم اسلامي هېوادونه له ځان سره یو ځای کړي چې پدې کار کې یې کامیابي یقیني ښکاري ځکه د اسلامي نړۍ هر هېواد ته د امریکا شر رسېدلی دی، څه د دوستی په لباس کې او څه ته د دښمنۍ په لباس کې .

د پاکستان د لومړي وزیر نواز شریف دا خبره چې ((چین د پاکستان د عزت محافظ دی)) ډېره مهمه وه خو په تاشکند کې پاکستاني ولسمشر ته د پوتین دا خبره چې ((موږ ټول مسلمانان یو )) ډېره مهمه ده ؛

پوتین په ډېرو روښانه ټکو د نړۍ ټولو مسلمانانو ته دا پیغام ورکړ چې هغه امریکا چې د مسلمانانو پر ضد یې صلیبي جنګ اعلان کړی دی د دې جنګ په بل اور کې یواځې مسلمانان نه بلکې ټول شرقیان سوځي ؛ موږ ټولو شرقیانو ته امریکا د مسلمانانو په نظر ګوري نو راځئ چې د دې شریک دښمن په مقابل کې په شریکه ودرېږو تر څو یې د شر نه ټول خوندي شو .

د امریکا په مقابل کې دې جوړیدونکی بلاک امریکا ډېره ورخطاکړیده نو ځکه یې ددې بلاک په مقابل کې د نوي بلاک د رامنځته کولو لپاره ګړندۍ هڅې پیل کړیدي؛ امریکا غواړي چې هند او ایران د ځان سره ودروي او پدې طریقې د کابل د اداري،ایران،هند او امریکا یو نوی اتحاد رمنځته کړي نو ځکه هند سره لوی تړونونه کوي اودایران د اتومي پروګرام په سر جوړ جاړي او ورنه د اقتصادي بندیزونو لرې کولو ته تیارېږي.

دا سمه ده چې ایران او هند دواړه د پاکستان او چین سره ستونزې لري خو د امریکا په غېږ کې ځان ورغورځول یې حل ندی، امریکا سخت بې باوره دوست دی، امریکا په خپل تاریخ کې هیڅکله هم د خپلو دوستانو سره وفا نده کړې او تل په خپلو دوستانو راګرځېدلې ده .

دامریکا ولسمشر بارک اوباما دخپلو اتحادیانوپه باره کې وایې چې څه پدې ځان ملامت ګڼم چې په اروپا مې له ضرورت نه زیات اعتمادوکړ ؛ اروپا ددومره اعتماد وړنه وه څومره اعتمادچې پرې امریکاکړیدی .

په خپل ترټولونېږدې اتحادي برتانې یې یوځل دتنقیدپرمهال دبرتانې لومړي وزیر ډیویډکیمرون ته مخامخ ویلي و چې که برتانیه خپله برخه مسئولیت (پیسې /دجنګ مصارف) نه اداکوي نوبیا دامریکا ددوستۍ وړنده

نو غوره به دا وي چې دا ټول شرقی هېوادونه خپل کوچني اختلافات شاته کړی او ددې وحشی زبر ځواک په مقابل کې سره یوشي تر څو یې داټول شرقي هېوادونه د واقع او متوقع شر نه محفوظ شي.

# د مؤمنانو ترمنځ د اخـوت او اتحاد په اړه

# د اسـلامي امـــارت اعـلامـیه

مسلمانانو ورونو!

پـه دې ورځـو کـې لیـدل کیـږي چـې د اشـغالګرو استخباراتي ګوډاګیان او زموږ د مؤمن اولس او متحد هیـواد سخت زړي دښمنان یو ځل بیا په ټول قوت هڅه کـوي ترڅـو د افغانستان د ورونو مؤمنو قومونو تـر مـنځ د نفـاق او دښـمنۍ اور بـل کـړي. ددې هـدف لپـاره دغـه د اسـلام او افغانسـتان دښمنان کله زهرجن او نفاق خپروونکي شعارونه بدرګه کـوي، کله خلک جاهلي عصـبیت او خپلمنځـي جګـړو تـه رابـولي او کله هم په داسې سیاسي او نمایشي حرکاتو لاس پـورې کـوي، چې د هیواد سره ورونه مؤمن قومونه د یوه بل په وړانـدې بـې باوره او د کینې له احساسه ډک کړي، حتی اوس یې تر ځمکه لاندې دمړو جسدونه هم له ضرره نه دي محفوظ.

زموږ ددین او هیواد اشـغالګرو دښـمنانو د خپلـو داخلـي مزدورانو په توسط دغه فتنه داسې طراحي کړې چې په هر قوم کې یې قـومي متعصـبین پیـدا او روزلي دي، ترڅـو پـه پـوره وقاحت د جاهلانه عصبیت غږ پورته کړي او بیـا یـې غـربي او نفاق خپروونکي رسنۍ په پوره قوت سره بدرګه او په دې ډول د تفرق او ذات البیني نزاع اور بل کړي.

د افغانستان اسلامي امارت د اسلام سپیڅلو هدایاتو، د مسلمانانو ترمنځ اخوت او د هیواد وحدت تـه پـه تعهـد سره، د دې موضوع په اړه خپل موقف په لاندې ټکو کې ابلاغوي.

لومړی: موږ پـه زغـرده اعلانـوو چـې د اسـلام لـه نظـره عصبیت او قوم پالنه یو مـردود او د شرم وړ عمـل دی چـې لـه اسلام سره هیڅ تړاو نلري؛ بلکې تر اسلام وړاندې د جاهلیـت د تورې دورې یو کرغیړن میراث دی. هر څوک چـې پـه جـاهلي عصبیت باور لري، د قومي یا قبیلوي تعصب احسـاس لـري او په دې عمل اخته وي، باید چې الله تعالی ته توبه وبـاسي او دا بدمرغه فکر له دماغ څخه وباسي، ځکـه عصـبیت او قومپالنـه کرغیړن جاهلیت دی چې اسلام یې د محو کولو حکم کوي.

زموږ مؤمن او مسلمان ورونه هغه که له هرقوم سره تـړاو لري باید چې د قوم پالنې په اړه لاندې الهي او نبوي ارشـاداتو ته په غږیدلو سترګو او پوره دقت سره توجه وکړي:

الله تعالی فرمایي: يَـا أَيُّهَـا النَّـاسُ إِنَّـا خَلَقْنَـاكُمْ مِـنْ ذَكَـرٍ وَأُنْثَى وَجَعَلْنَاكُمْ شُعُوبًا وَقَبَائِـلَ لِتَعَـارَفُوا إِنَّ أَكْـرَمَكُمْ عِنْـدَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ. الحجرات۱۳

ژباړه: اې مؤمنان! موږ - تاسې ( ټول) له یوه نارینـه او ښځې پیـدا کـړي یاسـت او د دې لپـاره مـو قومونـه او قبیلـې وګرځـولئ چـې سره وپیژنـئ ( کنـه) د الله تعـالی پـه وړانـدې ستاسو ډیر عزتمن هغه څوک دی چې ډیـر تقـوا لرونکـی وي، بې له شکه الله تعالی ښه پوه او باخبر دی.

وعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : ( لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ. رواه ابوداود.

ژباړه: پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي،څوک چې عصبیت یا قومپالنې ته دعوت کوي یا تر همدې شعار لاندې جګړه کوي او یا په دې لار کې ووژل شي زموږ له ډلې (مؤمنانو) څخه نه دی.

دغه راز رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: و عَنْ أَبِي نَضْرَةَ قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : ( يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَلَا إِنَّ رَبَّكُمْ وَاحِدٌ وَإِنَّ أَبَاكُمْ وَاحِدٌ ، أَلَا لَا فَضْلَ لِعَرَبِيٍّ عَلَى أَعْجَمِيٍّ وَلَا لِعَجَمِيٍّ عَلَى عَرَبِيٍّ وَلَا لِأَحْمَرَ عَلَى أَسْوَدَ وَلَا أَسْوَدَ عَلَى أَحْمَرَ إِلَّا بِالتَّقْوَى. رواه أحمد

ژباړه: امام أحمد له ابي نضره نه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اې خلکو! خبر اوسئ! په یقین سره ستاسو رب یو دی او په یقین سره ستاسو پلار هم یو دی( یعنې ټول د یوه پلار آدم علیه السلام زامن یاست) خبر اوسئ چې هیڅ عرب په عجم او نه عجم په عرب بهتري لري اونه سور په تور او نه تور په سور فضیلت لري مګر په تقوی سره (یعنې د بهترۍ معیار قوم او رنګ نه دی بلکې تقوی ده).

دغه راز په ډیرو نورو احادیثو کې هم رسول الله صلی الله علیه وسلم په عصبیت رد کړی او هغه یې متعفن شی بللی دی (دعوها فانها منتنة) عصبیت پرېږدئ چې دا یوه بدبویه پدیده ده.

نو همدې اسلامي هدایاتو ته په پام سره باید هیوادوال د اشغالګرو او ګوډاګیانو وروستۍ نفاق خپروونکي حرکات، یوه کفري پروژه او دسیسه وبولي چې په توسط یې هڅه کیږي یوه جاهلي فتنه راژوندی او د اولس ترمنځ داسلامي اخوت صمیمانه فضاء ورباندې تخریب کړي.

دوهم: د اسلامي اخوت او متحد افغانستان دښمنان هغه که بهرني دي یا داخلي باید په دې پوه شي چې، دوی په یوه بې پایلې او بې ګټې خوارۍ کې ستړي دي، د دې هیواد ټول قومونه تر هر څه وړاندې اسلام ته ټینګ او ربنتینی تعهد لري او معلومه خبره ده چې قومپالنه او نشنلیزم غیر اسلامي پدیدې دي، چې اصلي ریښه یې له قبل الاسلام جاهلیت سره تړاو لري او اوس یې د معاصر غربي جاهلیت په دور کې یو ځل بیا د نشنلیزم، قوم پالنې، ژب پالنې او نژاد پالنې په نوم ظهور کړی دی.

زموږ مؤمن اولس لکه څنګه یې چې د سیکولرزم، کمونیزم او غربي دموکراسي غیراسلامي مفکورې د خپل راسخ ایمان په قوت سره رد کړې دغه راز به د جاهلي عصبیت، نشنلیزم او قوم پالنې افکار هم محکوم او مردود کړي.

دریم: افغانستان کوم مصنوعي، په تکلف پیوند شوی یا نوی زیږېدلی هیواد نه دی چې شړول او د مؤمنو اولسونو سره بیلول یې کومه آسانه چاره وي، دلته مؤمنانو څوارلس پیړۍ دیوه بل ترڅنګ دوروڼو په شان ګډ ژوند کړی او کوي یې، په دې هیواد کې په مختلفو عنوانونو جګړې شوې مګر یوازینی څه چې زموږ تاریخ یې بیلګه نلري هغه قومي جګړه ده، دلته هیڅکله هم یو قوم د بل په مقابل کې ټوپک نه دی اخیستی، د تیرې میلادي پیړۍ د نوي یمو کلونو تنظیمي جګړې په هیڅ صورت قومي نه؛ بلکې د قومونو په نوم د جوړو شویو دروغجنو مشرانو او تنظیمونو د هوس او قدرت خپلمنځي جګړې وې؛ نو بناء د قومي نفاق ګرو اوسني تقابل ته دې هم څوک د کوم ربنتیني قومي بحران او نزاع نوم نه ورکوي، د افغانستان ازبک، پښتون، تاجک، عرب، هزاره، بلوڅ، نورستانی، ایماق، ترکمن، ګوجر او د نورو ټولو قومونو سره تړلي عام خلک، بزګران، کسب ګر، تجاران او د ټولنې ټول

آساسي قشرونه تر خپل منځ د ورونو غوندې په صميميت ژوند کوي، تر خپل منځ معاملات، مناکحات، دوستۍ او گاونډيتوب کوي او تر منځ يې د اسلامي اخوت ايماني رشته داسې غښتلې ده چې د کفري دسيسو هيڅ قيچي يې نه شي غوڅولی.

ځلورم: اولس اوڼۍ ته معلومه ده چې د نورو شرعي اهدافو ترڅنگ دافغانستان د اسلامي امارت د قيام يو اساسي هدف دا و چې په نوي يمو کلونو کې دغه مظلوم اولس او متحد هيواد د قومي، ژبنيو، نژادي او سمتي تعصباتو او خپل منځي جگړو له بدمرغۍ څخه وژغوري، د ملوک الطوايفي ټغر ټول او د عصبيت فتنه محو کړي، چې د الله تعالی په نصرت سره هغه مهال اسلامي امارت خپل دا هدف په اعلی طريقه سره ترلاسه او د هيواد او متحد مسلمان اولس د فتنه گرو دښمنانو دسيسې يې شنډې کړې.

اسلامي امارت اوس هم د اولسي- وحدت او د هيواد ځمکنۍ بشړتيا او يووالي سپيڅلې وظيفې ته ژمن دی. اسلامي امارت بلا استثنا د هيواد په ټولو ولاياتواو سيمو کې فعال حضور لري . او بلا استثناء د ټولو قومونو، اقشارو او پرگنو په زړونو کې په ځای ميندلو سره يې ثابته کړې چې په اوس وخت کې د هيواد يوازينی افغانستان شموله او له جاهلي انگيزو څخه پاک او متحد صف همدا دی.

دې ته په پام سره هر هغه څوک چې په اسلام او اسلامي اخوت عقيده لري، د کافر په وړاندې دښمنۍ او د مسلمان سره دوستۍ ته تعهد لري، قومي او ژبني عصبيتونه جاهلي رواجونه بولي او د هيواد او اولس د وحدت ارمانجن وي، بايد چې په پوره صراحت د قومي جاهلي فتنه گرو څخه بيزاري اعلان او د اسلامي امارت سپيڅلې ديني داعيه تائيد کړي.




ځکه الله تعالی هم په وحدت او يووالي امر کوي چې فرمايي: واعتصموا بحبل الله جميعا ولا تفرقوا. ۱۰۳ آل عمران.

ژباړه: او د الله تعالی په رسۍ ټول منگولې ولگوئ او ډلبازي مه کوئ.

په پای کې په ځانگړې ډول نوي نسل، ځوانانو، محصلينو، متعلمينو او د ټولنيزو رسنيو فعالانو ته وايو چې، د تش په نامه سياسي رهبرانو تر عنوان لاندې د پرديو د معاش خورو گوډاگيانو په شعارونو او خبرو پسې ولاړ نه شئ! دا زموږ د ايمان غوښتنه ده چې قومپالنه، ژب پالنه، نژاد پالنه او نور جاهلي عصبيتونه رد کړو او که خدای مکړه څوک دغه لار تعقيب کړي نو په دنيوي فساد او بدنامۍ سربيره به ورته دا وعيد هم متوجه وي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: مَنْ قُتِلَ تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ يَدْعُو عَصَبِيَّةً أَوْ يَنْصُرُ عَصَبِيَّةً فَقِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ. رواه مسلم -( يعني څوک چې د ناپيژندويه بيرغ لاندې مړ شي چې عصبيت ته بلنه ورکوي يا د عصبيت مرسته کوي نو مرگ يې د جاهليت دی) .

الله تعالی دې موږ تاسو ټول د جاهليت او معاصرو جاهلانو له ملگرتيا څخه وژغوري. والسلام

دافغانستان اسلامي امارت

۹/۱۲/۱۴۳۷هـ ق

# دوی دې خپل کار کوي، مونږ به خپل کار کوو

احمد

په دې مو باید سر خلاص وي، چې ډېر داسې لغات او تعبیرونه شته، چې زمونږ اسلامي ټولنې ته د بېگانه گانو له خوا راوړل شوي، خو اوس مسلمانانو داسې خپلوي ورسره شروع کړې، چې بیخي سر پرې ماتوي او خپله دغه بل رنگي او د پردیو متابعت روښن فکري بولي، که یو بیدار مسلمان یې خپلې غلطۍ او اشتباه ته متوجه کوي، نو دا خو پرېږده چې خپله اشتباه ومني. بلکې دا بیداره مسلمان کورمغز بولي او په نورو نومونو سره یې يادوي.

بین الملل، د امنیت شورۍ، د بشر د حقوقو اداره، د ملکونو تر ترمنځ وېش، د دې وېش سره د سرحداتو نوم، سفارت، سفیر، ډیفلومات، ډیفلوماسي، ډیفلوماسي تگلاره، ډیفلوماسي خندا او ډیفلوماسي لهجې، د ډیفلوماتانو عکسونو ته درېدل، بین المللي یونیفورم، بل او بل دا ټول پردي نومونه او اصطلاحات دي. بین الملل نړیوال کفر د اسلام د تخریب لپاره جوړ کړی، دوی غواړي اسلام په سیاسي لحاظ، چې د نظام په شکل کې وجود ولري، له منځه یوسي. په نورو بحث نه کوو، راځو بین الملل ته، په بین الملل کې فقط ۵ هیوادونو ته، چې ټول کفري دي، د ویتو حق حاصل دی، یو اسلامي ملک هم د ویتو حق نه لري، که ټول اسلامي ملکونه په یوه خبره متحد شي او د یو شي فیصله وکړي، یوازې یو کفري ملک یې فسخ کولی شي، خو د دې بر عکس، که یو کفري ملک یوه جابرانه، غاصبانه او دجالي فیصله وکړي، ټوله اسلامي نړۍ به یې منی او دا نه شي ویلی، چې دا مونږ فسخ کوو. دا اوس کوم عدالت او مساوات دي او کوم منطق دي؟ د اسلامي نړۍ ستر سیاست مدار، د اسلامي خلافت د فکر مجدد ملاصاحب مبارک په خپل قاموس کې بین الملل ته د بین الامریکا نوم ورکړی او په خپله واقعاً اسلامي لهجه یې د نړۍ استکبار پوهولی، چې ستا بین الملل، بین الملل نه دی، دا د جبر، غصب او دجالي یو ستر برج دی.

ملاصاب نړۍ په دې پوه کړه، چې اسلام له هېڅا رنگ نه اخلي، خپل اللهي رنگ بشري جامعې ته عرضه کوي، اسلام د انساني ژوند په هر اړخ کې راولي او د نړۍ سره د دوی په طریقو او د دوی په خود ساخته لهجو سر نه خلاصوي، یوازې او یوازې د اسلام څخه الهام اخلي او اسلام د ژوند په هره شعبه، هر کونج او کنار کې عملي کوي، داسې څنگه کېدای شي، چې مسلمان باید لمونځ، روژه، حج، زکات او نور احکام د اسلامي چوکاټ د ننه سرته ورسوي، خو سیاست باید د کافر په فرمایش او د بین الملل په طریقه باندې تر سره کړي، دا نظریه د اسلام د تقاضا خلاف او د یو واقعي مسلمان ضمیر نشي برداشتولی، د مسلمان هر څه باید اسلامي وي، هر څه یې د اسلام تر چتر لاندې وي، هم په انفرادي لحاظ، هم په اجتماعي لحاظ او هم په سیاسي لحاظ؛ په دې ټولو کې باید مسلمان وي، داسې نه ده پکار، چې لمونځ کوم په اسلامي طریقه، روژه نیسم په اسلامي طریقه، حج کوم په اسلامي طریقه بل او بل کوم په اسلامي طریقه، خو چې خبره سیاست او قانون ته متوجه شي، نو سم دم د اسلامي طریقې څخه بهر او له ځانه تر کافر لوی کافر جوړ کړي.

گرانو لوستونکو!

د ملا صاب مبارک دغه نقطې ته پام وو او دغه خبره یې د کافر مغز ته ورسوله او کافر یې په دې خبره پوه کړ، چې زما د سیاست دا نقشه ده، زما سیاست اسلام ته تکیه دی، ستا په طریقو او لهجو نه پوهېږم، ته خپل کار کوه زه به خپل کار کوم.

هو، هغه ساده ملا چې معنویت ته یې د مادي نړۍ استکبار په گونډو شو!!

هو، هغه چې صحابه کرامو ته، ورته خپله له معنی او سوچه گې سادگي ډکې سادگي ته یې په مادي لحاظ د پېشرفته او رنگینې نړۍ دنگ برجونه سلامي شول.

هو، هغه چې په خپله خړه پړه حجره یې د نړۍ د استکبار سپینې ماڼۍ ته ټکان ورکړ.

هو، هغه چې خپله سادگي او ملنگي یې د پر مختللې نړۍ په قاموس کې داخله او نړۍ یې په خپلو ساده خبرو پوه کړه، خو د دوی له نمایشي رنگینتوب څخه یې رنگ وانخیست او تش په نام بشري پېشرفت ته یې د دجالي حقیقي ارتجاع نوم ورکړ او خپله خړه پړه حجره یې "صفې" او خړه پړه طالبي یې "اصحاب صفه" وو ته عملاً منسوب کړه او د خلافت مجدد، ستر اسلامي سیاست مدار، خپلې ساده او ملنگې خړې حجرې ته سپینه ماڼۍ په گونډو کړه.

# دهلمند دحالاتو په اړه

## د اسلامي امارت له وياند قاري محمد يوسف احمدي سره مرکه

مرکيال: قاري حبيب

**درنو لوستونکو! سږکال د عمري عملياتو په لړکې د هيواد په مختلفو سيمو کې مجاهدينو د پام وړ پرمختگونه کړي دي چې له دې جملې د جهادي فتوحاتو يوه خبرسازه سيمه د هلمند ولايت دی چې مجاهدينو په کې پراخې سيمې ددښمن له شتون څخه تصفيه کړې دي.**

**دا چې اوس په هلمند کې وضعيت څنگه دی د همدې يو لړ نورو مسائلو په اړه مو د اسلامي امارت وياند ښاغلي قاري محمد يوسف احمدي صاحب را غږولی چې مرکې ته يې ستاسو پام راگرځوو.**

**پوښتنه**

محترم احمدي صاحب له هرڅه وړاندې تاسو ته هرکلی وايو. که په پيل کې د هلمند ولايت په اوسني وضعيت رڼا واچوئ چې فی الحال وضعيت څرنگه دی؟

**ځواب**

الحمد لله رب العلمين و الصلوة والسلام على سيد المرسلين وامام المجاهدين و على آله و اصحابه اجمعين. وبعد:

تاسو او ټولو درنو لوستونکو ته سلامونه او نيکې هيلې وړاندې کوم.

ستاسو د پوښتنې په ځواب کې به ووايم،چې د هلمند ولايت جهادي وضعيت د هر کله په نسبت په ښه حالت کې دی، هغه داسې چې ددې ولايت له څو محدودو اداري مراکزو پرته ټولې سيمې فتحه شوي دي. تاسو به له رسنيو اوريدلي وي چې ددښمن محلي چارواکو خپله په جهر اعتراف کړی چې د هلمند د څه کم ۶۰ زره مربع کيلومتره مساحت څخه تر اتيا فيصده زياته برخه يې د مجاهدينو لخوا نيول شوې ده. خو حقيقت دادی چې ددې پراخ ولايت تر ۹۰ فيصده زياته حصه همدا اوس د اسلامي امارت په ولکه کې ده، ځکه حکومتي چارواکي يوازې په مرکز لشگرگاه او دگرشک، نادعلي، ناوې، مارجې او گرمسير ولسواليو په مراکزو کې په کلابند شکل شتون لري. په هلمند کې هيڅ داسې ازاده يا اطرافي کليواله ساحه نشته چې هلته دې د دښمن سلطه پاتې وي بلکې په بشپړ ډول يې دخدای په فضل له اطرافو ټغر ټول شوی دی.

په دې توگه ويلی شو چې په هلمند کې مجاهدين د هرکله په نسبت په ډيره ساحه حاکم، د عملياتي کارکردگۍ او مورال له اړخه پياوړي او د فتحو په مسير برابر دي. لله الحمد په هلمند کې يو داسې تحول راغلی چې د درست هيواد د ازادۍ هيلې يې تاندې کړې او د محکوم اولس زړونه يې خوشاله کړي دي.

**پوښتنه**

تېر کال د عزم عملياتو په لړ کې د هلمند زياتره شمالي سيمې فتحه شوې، نوزاد، موسی قلعه، سنگين ، دغه راز د کجکي او گرشک ډيرې سيمې . سږکال د عمري عملياتو په لړ کې په هلمند کې کومې سيمې فتحه شوې دي که په مشخص ډول يې لوستونکو ته يادونه وکړئ؟

**ځواب**

ستاسو د دې پوښتنې ځواب به زه لږ په تفصيل سره وکړم، هغه دا چې تير کال د هلمند زياتره شمالي ولسوالۍ ددښمن له شتون څخه تصفيه او د اسلامي نظام تر



سيوري لاندې راغلې،خو د هلمند مرکزي او جنوبي سيمې لا هم ددښمن ترولکه لاندې پاتې وې، دا په حقيقت کې هغه سيمې دي چې په ۲۰۰۹ ميلادي کال په اوړي کې امريکايانو د خنجر او برتانويانو د پړانګ پنجه په نوم عملياتو په لړ کې نيولې وې، دخنجر عمليات چې امريکايي راډيو ګانو ورته خورا ډېر تبليغات وکړل ، طرح ريزي يې داسې شوي وه چې زرګونه امريکايي سرتيري ، چې دسمندري ځواکونو ځانګړې قطعه هم په کې وه ، په شوراب کې به دامريکايانو له ستر کمپ څخه مخ په جنوب حرکت کوي او دسيستاني له دښتې له تيريدو وروسته به په دريو برخو ويشل کيږي ، چې يوه برخه به يې په ناوه ، بله په ګرمسير او دريمه ډله به په خانشين ولسوالۍ بريد کوي . هم مهال له لښکرګاه څخه برتانوي عسکر د پړانګ پنجه په نوم عمليات پيلوي او د نادعلي او باباجي سيمو ته به داخليږي.

د يرغلګرو دا عمليات خورا درانه عمليات و چې د ۲۰۰۹ م کال په جولای کې پيل او څو اونۍ دوام يې درلود، ددې عملياتو په مقابل کې مجاهدينو د فولادي جال په نوم عمليات اجراء کړل چې ددښمن سلګونه سرتيري او ټانګونه يې په ماينونو او مخامخ بريدونو کې له منځه يوړل، خو دا چې دښمن خورا سخت مظالم ترسره کول، بمبارونه او درنې مرمۍ يې په ولسي سيمو اورولې ددښمن يرغلګر عسکر وتوانيدل چې د يادو پنځو ولسواليو اکثر ساحات تر اشغال لاندې راولي او هلته پخې قرارګاوې جوړې کړي.

امريکايانو او ملګرو يې په تيرو اتو کلونو کې په دې سيمو خورا زيات مصارف وکړل، سلګونه قرارګاوې او پاخه بيسونه يې جوړ کړل،زرګونه اربکيان يې وروزل او داخلي عسکر يې په دې سيمو کې ميشت کړل تر څو له دوی وروسته دغه سيمې وساتي.

سږ کال د اسلامي امارت مجاهدينو پلان درلود چې په يادو سيمو، لکه ناوه، ګرمسير، خانشين، نادعلي او باباجي کې ددښمن زور مات کړي او دا سيمې بيرته له دښمن څخه ونيسي.ددې سيمو د فتحې عمليات د سږکال د جولای مياشتې په ۳۰ د خانشين له ولسوالۍ څخه پيل شول چې مجاهدينو له لږ مقاومت وروسته دخدای په فضل سره د خانشين ولسوالۍ مرکز فتحه کړ، ورپسې په دوهمه ورځ يې د نادعلي په ولسوالۍ بريد وکړ او ددې ولسوالۍ تقريبا ټولې اطرافي سيمې يې ونيولې، لسګونه حکومتي سرتيري تسليم شول او نور يې د ولسوالۍ په مرکز کې کلابند شول، د اګست په دريمه د لښکرګاه سره نږدې د چاه انجير مهمه سيمه فتحه شوه،ورپسې د اګست په لسمه د ناوې ولسوالۍ د مجاهدينو لخوا فتحه او دوه ورځې بعد د ګرمسير ولسوالۍ له مرکز پرته ټولې سيمې ددښمن له شتون څخه تصفيه شوې،همدا اوس د يادو ولسواليو يوازې په مراکزو کې محدود شمير ددښمن افراد شتون لري نور اطراف يې ټول دمجاهدينو له لوري فتحه شوي دي چې په دې ډول الله تعالی هغه سيمه چې اشغالګرو په کې اته کاله خواري کړې وه، خپل اربکيان يې په کې ځای پرځای کړي ول او پخې قرارګاوې يې په کې جوړې وې الله تعالی ددوو اونيو په ترځ کې دمغرورددښمن دغه ټولې خوارۍ په اوبو لاهو او يادې سيمې يې يو ځل بيا د اسلامي امارت تر حاکميت لاندې راوستې.

### پوښتنه

داسې ويل کيږي چې په هلمند کې مجاهدينو عجيب او غريب جنګي تاکتيکونه کارولي دي تر دې چې ددښمن چارواکو په رسنيو کې اعتراف وکړ چې شپږ تنه مجاهدين توانيدلي له څلويښتو



پولیسو څخه پوسته ونیسي. که په دې اړه معلومات راکړئ چې په هلمند کې د مجاهدینو د پرمختګ او فتوحات راز په څه کې دی؟

**ځواب**

دمجاهدینو دموفقیت راز په اخلاص النیة، ذاتي تقوا او دخپلو مشرانو په پوره اطاعت کي نغښتی دی چي دا هغه څه دي چي دښمن ته ماتي ور کولای شي بل دا چي مجاهدین الحمدلله ښه جنګي تجربه لري او له داسي مؤثرو تاکتیکونو څخه کار اخلي چي دښمن سربداله کولای شي کله دنفوذي کسانو په مټ داکار تر سره کوي کله ددوی له خپل منځي اختلاف نه ګټه پورته کوي او کله هم دوی یو پربل بدګمانه کوي دغه راز دښمن له دښمن څخه پرمختللې وسلې، د شپې د لید وسائل او نور عصري جنګی وسائل په غنیمت نیولي دي چي په وسیله یې مجاهدین ددښمن په پوستو ناڅاپي چاپي اچوي او هغوی له غبرګون مخکې وژني او یایي تسلیمۍ ته مجبوروي، دغه راز ځیني نور جنګی تاکتیکونه هم شته چي د محرمیت له امله یي بیانول په کار نه دي نو دا ټول

هغه څه دي چي مجاهدینوته یې بریا ورپه برخه کړې او دښمن یې له ماتې سره مخ کړی.

**پوښتنه**

کومې سیمې چې فتحه شوي دي د هغو وضعیت څرنګه دی؟ یعني هلته خلکو ته د سولییز ژوند،سوکالۍ، عدالت او استقرار زمینه برابره شوې ده؟

**ځواب**

بلي هو کومې سیمې چي داسلامي امارت دسپیڅلیو مجاهدینو په لاس فتحه شوې داولس لپاره یې تر ټولو ستره سو کالي هم دا وه چي دوی یې ددې فاسدې ادارې له غیراسلامي نظام او د هغوی له ټوپکي اوباشانو او بدنامو اربکیانو نه خلاص کړل چي ددوی ژوند ډیر ورسره په تنګ وو چي هغو یې نه پر مال سرپه کوله او نه یې ددوی ژوند ته ارزښت ورکاوو دکورونو لوټل او داولس ازارول ددوی ورځنۍ بوختیاوه خو دنوموړو سیموته دمجاهدینو راتګ دې مظلوم اولس دخوشحالۍ په اوښکو بدرګه کړ

د مفتوحه سیمو د ساتنې او هلته د رعیتي خلکو د سر، مال، عزت او ټولو شرعي حقوقو د ساتنې او پالنې لپاره اسلامي امارت د خپلې تیرې واکمنۍ څخه په زده کړه بشپړه تجربه لري،اود صحت، معارف،عامه خدمتونو اود خلکو د هوساینې لپاره په ټولو برخو کې حتی الوسع کوښښ کوي.د مشرتابه لخوا مجاهدین په دې مأمور شوي چي د اولس

سره د پوره رعایت او خوش اخلاقۍ په چوکات کې چلند وکړي او ټوله هڅه وکړي چي دغه ځوریدلي مسلمانان تر سپین شرعي بیرغ لاندې د ارام ساه واخلي او د کلونو ستوماني یې رفع شي.

ولسي خلکو ته ویل شوي چي که ستاسو خپل خپلوان له دې فاسدې ادارې سره کار کوي هغه را وباسئ زموږ له خوا ورته عفوه ده چي دې کار نور هم اولس خوشحال کړ او دسوله ییز ژوند اسباب یې ورته برابر کړل

ددوی خپل منځي اختلافات که دځمکې او پټي پرسر ول او که نورې ددې فاسدې ادارې په وجود کي را پیداشوې بد مرغۍ وې دا ټولې یې داسلامي امارت دمجاهدینو په راتګ او دشرعي نظام په موجودیت کي دقضا له لوري حل او فصل شوې چي اوس ټول دورونو په شان سو کاله خوشحاله او آرام ژوند کوي او دګوډاګۍ ادارې په خلاف دخپلو مجاهدینو تر څنګ ډیر په متانت او زړورتیا سره ولاړ دي او له خپل ژوند تیر ولو څخه لله الحمد راضي دي.

**پوښتنه**

د هیواد په نورو ساحوکې جهادي وضعیت څرنګه دی که په اړه یې عمومي معلومات او څو بیلګې راسره شریکې کړئ؟

**ځواب**

لله الحمد د هیواد په نورو ساحاتو کې هم جهادي عملیات په پوره قوت سره

جریـان لري،پـه بدخشان،نورسـتان،تخار، کندز، بغلان،پکتیا، ننګرهار،فاریاب، فـراه او ډیـرو نـورو ولایـاتو کـې مجاهـدین توانیـدلي چـې لـه دښـمن څخـه بشـپړې ولسـوالۍ او ډیـرې سیمې ونیسي- پـه دې سربیره په پلازمینه کابل کې هـم پـه دښـمن باندې ځینونکي استشهادي بریدونـه تـرسره شوي دي. د هیواد په مختلفـو سـاحاتو کـې روزانه ددښمن افراد تسلیمیږي او د جلب او جـذب کمیسـیون لـه لارې د امـارت لـه صـف سره وصـل کیـږي او د مخالفـت لاره پریږدي.پـه عـین حـال کـې د مجاهـدینو د پاشلو او تفرق په مقصد ددښمن ټولې هڅې او دسیسـې ناکـامې شـوي دي او اسـلامي امارت د هرکله په نسبت ، متحـد، منظم او بنیادونه یـې محکـم دي. پـه نظـامي لاسـته راوړنو سربیـره اسـلامي امـارت د معـارف، دعوت او ارشـاد،نړیوالو اړیکـو، فرهنګـي جهاد او په نـورو برخـو کـې هـم د پـام وړ لاسته راوړنې لري او په عام اولس کـې یـې محبوبیت د هر وخت په نسبت زیات شوی دی. دا په داسې حال کې دی بالمقابل دښـمن او ګوډاګی رژیم تر ټولو پـه بـدحالت کـې قرار لري،خپل منځي اختلاف یـې اوج تـه رسیدلی او وسلوال یې د جګـړې او مقـابلې لپاره هیڅ مورال او روحیه نلـري نـو ځکـه ورځ تـر بلـې ورځ د تیښـتې لاره نیسي- او هیواد ترې تصفیه کیږي.

**پوښتنه**

امریکایانو اعلان کړی چې افغانستان ته به اضافه عسکـر ر اولي په دې لړ کې یـې د هلمنـد ولایـت تـه څـو سـوه تـازه دمـه عسکر هم راوستي دي، دغـه راز یـې ویـلي چـې د شـپې بریدونـه او د بي دوه پنځـوس ډوله جنګي الوتکو د استعمال په شمول لـه ټولو جنګي ابزارو څخه کار واخلي تر څـو مجاهدین سرکوب کړي، ددښمن دغو خبرو او مواقفو ته ستاسو غبرګون څه دی؟

**ځواب**

د امریکایـانو ددې نـوې سـتراتیژۍ د نتائجو سنجولو لپاره فکر کوم، ډیر تحقیـق او فکـر تـه ضرورت نشـته، ځکـه تیـره پنځلس کلنه تجربه د ټولو په مخکې پرتـه ده،ټولو ولیدل چې دې هیواد تـه د بیلابیلـو کفـري هیوادونـو لسـګونه زره عسـکر راغلـل، ډول ډول تکنـالوژۍ یـې وکـاروله خو دا چې زموږ اولس په الله تعـالی ټینـګ ایمان درلود،د وسائلو په ځای یـې پـه الهي نصرت بـاور درلـود او یـوازې د فتحـې او شهادت په امید جنګیدل، الله تعـالی یـې پـه وړاندې د کفر ټول بیرغونه یو په بـل پسـې نسکور کړل.

امریکایانو یو وخت دلته د یولک او دیرش زره په شاوخوا کې مسلح ځواکونـه درلـودل خـو د جګـړې پـه ډګـر کـې د مجاهدینو په ماتولو بریـالي نـه شـول. اوس هم که امریکایان اضافه عسـکر د جګـړې میدان ته راولي زموږ مجاهدین یې پـه لـوړ عزم مقابلې ته تیار دي،مجاهدین تـر پخـوا په هر لحاظ په ښه توګه سمبال، ازمـوده او په ایماني اوروحي لحاظ په ښه حالت کـې دي چې د کفري لښکرو په خلاف جهـاد او شهادت د ژوند تر ټولو سـتر شرف او ویـاړ بـولي. امریکایـان دې هیڅکلـه دا بـاور نـه کوي چې په دغه ډول جنګي ستراتیژیو بـه زموږ مؤمن اولس ته شکست ورکړي یا بـه یې ودار کړي، بلکې دغه ډول اقـدامات بـه یې یوازې د عسکرو تلفات زیـات کـړي او پای به بیا هم سرټیټي او په بد حالت کې په تیښته مجبوریږي.

**پوښتنه**

کـه پـه پـای کـې د اسـلامي امـارت د ویاند په حیث لوستونکو ته څه پیغام لـرئ مهرباني وکړئ؟

**ځواب:**

دا چې تاسو لوستونکي یـاد کـړل نـو همدې ورونو ته دا ویل غواړم چې په هره برخه کـې داسـلامي امـارت لـه مجاهـدینو سره همکار پاتې شي او نـورو هغـو هیـواد والو ته چې داسلامي امارت سایټ ،مجلو ، ویډیویي اصداراتو،او جرایدو ته پـه پـوره توګه لاس رسی نه لري پـه حقیقتونـو خبر او آګاه کړي چې اولس باید په هـر قیمت چـې وي نـور هـم دمجاهـدینو تـر څنـګ ودریږي او پـه جهـادي امـورو کـې ورسره همکاري او مرسته وکړي او مجاهدین دي نور هم دخپلو مشرانو پـوره پـوره اطاعـت وکـړي چـې پـه دې کـې یـې هـم ددنیـا او آخرت دواړو خیر نغښتی دی.

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته

# کمک‌های برباد رفته از ۲۰۰۲ تا ۲۰۱۵

نیازی . ضیایی

افغانستان؛ چنان‌چه از لحاظ سیاسی همیشه دستخوش تغییرات و تحولات بوده از لحاظ اقتصادی و مالی نیز خودکفا نبوده و به ثبات دست نیافته است. صرف‌نظر از این‌که حکومت‌ها معمولاً مصارف خود را از سرزمین‌های پهناورِ تابعه و اشغال‌شده‌اش (اقتصاد غارتی) به‌دست می‌آوردند، اکثر دولت‌های پس از استقلال به‌نحوی به کمک‌های مالی کشورهای خارجی وابسته بوده و چه‌بسا این وابستگی‌ها عامل اصلی گسست‌ها، بحران‌ها و ناپایداری حکومت‌ها بوده است.

بر اساس اسناد و شواهد تاریخی، گفته می‌شود که افغانستان اولین کمک مالی خارجی را از کمپنی هند شرقی در زمان حاکمیت بریتانیای کبیر بر جنوب آسیا در یافت کرده و این کمک سرآغاز دریافت کمک‌های مالی از کشورهای خارجی بوده- که افغانستان بدون آن هیچ‌گاهی توانایی تمویل مصارف حکومتی و نظامی خود را نداشته است. حجم و اندازه‌ی این کمک‌ها بسته به شرایط سیاسی و اقتصادی کشور فراز و فرودهایی را تجربه کرده است. بیشترین کمک‌های اقتصادی و مالی طی سال‌های (۲۰۰۲- ۲۰۱۲) یعنی بعد از سقوط دولت طالبان و نشستن کرزی بر اریکه‌ی قدرت صورت گرفته است که می‌توان آن را دوران طلایی کمک‌ها نام‌گذاری کرد.

دوره‌ی پس از طالبان نقطه‌ی عطفی در تاریخ کمک‌های اقتصادی به افغانستان به‌شمار می‌رود. پس از دوره طالبان، و ورود کشورهای خارجی به کشور، افغانستان در زُمره‌ی بزرگترین کشورهای دریافت‌کننده‌ی کمک‌های خارجی قرار گرفت. بیش از سی‌وپنج کشور و ده‌ها سازمان مالی بین‌المللی و منطقه‌یی در بازسازی و احیای زیرساخت‌های اقتصادی افغانستان سهم گرفتند. ده‌ها کنفرانس بین‌المللی در مورد تمویل و احیای زیربناهای اقتصادی، سیاسی و اجتماعی افغانستان دایر گردید و میلیاردها دالر وارد سیستم اقتصادی کشور شد. به اساس گزارش «سالنامه‌ی همکاری‌های توسعوی» مجموع کمک‌های تعهد شده به‌صورت شفاهی از سال ۲۰۰۲ الی ۲۰۱۲ به ۱۱۹ میلیارد دالر امریکایی رسیده است که ۷۰ میلیارد دالر آن عملاً مصرف شده است. طبق گزارش دیگری که توسط اداره‌ی بازرسی عمومی امریکا برای بازسازی افغانستان (سیگار) در سال ۲۰۱۴ نشر گردید، صرف امریکا از سال ۲۰۰۲ تا ۳۰ جنوری سال ۲۰۱۳ به افغانستان حدود یک‌صد و چهار میلیارد دالر که بیش از بودجه‌ی طرح مارشال برای بازسازی اروپای غربی بعد از جنگ جهانی دوم بوده در افغانستان هزینه کرده است.

این کمک‌ها علیرغم یک عده تاثیرات اما نتوانست به اهداف تعریف‌شده «مطابق استراتژی انکشاف ملی» که همانا تقویه‌ی بنیه‌های اقتصاد ملی، افزایش درآمدهای داخلی وثبات

مالی بود، دست یابد. هنوز هفتاد فیصد بودجه‌ی ناچیز (۶.۶) ملیارد دالری کشور از کمک‌های خارجی تمویل می‌گردد و نیروی نظامی کشور که بزرگ‌ترین سهم بودجه‌ی ملی (۶۳ درصد بودجه‌ی عادی و ۴۰ فیصد بودجه‌ی ملی) را به خود اختصاص می‌دهد بدون این کمک‌ها نمی‌تواند قدمی بردارد.

بخشی از این کمک‌ها که به سیستم مالی دولت تزریق شد به مصرف نرسید و فیصدی زیادی از این پول‌ها در یک چرخه‌ی باطل از یک سال به سال دیگر منتقل شد. در این دوره حد اوسط مصرف بودجه‌ی ملی تمام واحدها بودجوی از ۲۰ الی ۳۰ درصد بالاتر نرفت. بخش عمده‌یی از این مصارف اندک یا صرف ولخرجی‌های دولتی و معاشات دالری شد و یا هم به‌علت صرف نشدن در طرح‌های ضروری و استفاده از آن برای طرح‌های غیرضروری ضایع گردید. واقعیت این است که از کمک‌های هنگفت مالی این دوره استفاده‌ی درست صورت نگرفت. عناصر داخلی و خارجی کمک‌ها را به عشرت‌خانه‌های خود بردند. این درحالی است که اگر این کمک‌ها درست مدیریت می‌شد و به رانت‌خوران دولتی و غیردولتی میدان داده نمی‌شد، حجم کمک‌ها در حدی بود که می‌توانست بخش اعظمی از ویرانه‌های این کشور را آباد سازد و رفاه اجتماعی، زیربناهای کشور و ثبات اقتصادی و سیاسی دولت را افزایش دهد.

بسیاری از پروژه‌های توسعوی چند برابر قیمت واقعی‌اش هزینه برده و قراردادهای آن‌ها خرید و فروش و دست‌به‌دست شده و در نهایت طرح‌های ضعیف و فاقد نتیجه‌ی قابل‌توجه به مردم و جامعه تحویل داده شد. به‌طور مثال بزرگ‌ترین پروژه‌های تطبیق‌شده‌ی این دوره که شاهکار بازسازی نیز گفته شده است، اعمار بخشی از شاهراه‌های کشور است ولی وضعیت این جاده‌ها اکنون چنان وخیم است که گویی چندین دهه از عمر اقتصادی این پروژه‌ها گذشته باشد. سرک‌های تکه‌وپاره که گویی سال‌ها بدون وقفه زیر ضربات سهمگین باد و باران و سیلاب قرار گرفته باشند اکنون تخریب شده و برای مردم افغانستان کارآیی ندارند. تنها شاهراه‌ها نیست که از لحاظ کیفیت و کارایی می‌لنگند بلکه تمام مکاتب، ساختمان‌ها و جاده‌های شهری (به‌طور مثال کابل) که در دوره‌ی کرزی احیا و بازسازی گردیده بود خام و سطحی بود.

کرزی به‌جای مبارزه‌ی جدی با فساد و مدیریت بهینه‌ی کمک‌ها یا فساد را توجیه کرد و یاهم با فرافکنی، خود و مدیرانش را کنار کشید. و به‌دلیل تیره شدن روابطش با امریکایی‌ها تمام فساد و ناکارایی‌های دولتش را به پای خارجی‌ها ثبت کرد و بدین‌سان مفسدین داخلی را یا تبرئه کرد

دوره‌ی کرزی ودولت به اصطلاح وحدت ملی به‌تمام معنا دوره‌ی هرج‌ومرج مالی بود. اینها هیچ‌گونه عزم و اراده‌ی جدی برای مبارزه با فساد نداشته وندارد . نهادهایی که تحت فشار خارجی‌ها برای مبارزه با فساد ساخته شد خود به فساد آلوده گردید. رژیم با این «استراتژی» که بازسازی و امنیت باهم رابطه‌ی مستقیم دارد، بخش اعظم کمک‌ها را به مناطق ناامن سوق داد اما این کمک‌ها سر از مکاتب خیالی و معاشات خیالی درآورد.

# د امریکا د ملګرتیا پایله

خالد څرګند

ډېری وخت مو اوریدلي چې امریکایې الوتکې په داسې ټکنالوژۍ سمبال دي چې د ځمکې په مخ هګۍ هم لیدلی او تفکیک کولی شي. خو دا لومړی ځل نه دی چې د امریکا هوایې ځواک افغان پوځیان په نښه کوي او بیا وایي چې تیروتنه شوې او موږ به یې په اړه پلټنه وکړو. پرون دوشنبه د ارزګان ولایت په څاګي سیمه کې د امریکایې ځواکونو له خوا د افغان پولیسو پوسته په نښه شوه چې په ترڅ کې ۹ تنه پولیس و وژل شول.

دا د خپل ډول لومړۍ او وروستۍ پیښه نه ده چې را منځ ته شوې، بلکې تر دې مخکې په لس هاو ځله د امریکایې ځواکونو له خوا په قصدي توګه د افغان ځواکونو په پوستو او مرچلو برید شوی. دغه ډول برید تیره میاشت د کندز ولایت د خان آباد ولسوالۍ په چارسرکه سیمه کې په داسې حال کې تر سره شو چې افغان ځواکونه له وسلوالو طالبانو سره په جګړه بوخت ول او د امریکا هوایې قواو برید پرې وکړ او تر ۳۰ زیات سر تیري یې و وژل، خو له بده مرغه چې په هغه پیښه باندې ټول چپه خوله پاتې شول او رسنیو ته د نشر اجازه ور نه کړل شوه.

همدا شان د هلمند په ولایت کې امریکایې ځواکونو د طالبانو په هغه زندان هوایې برید وکړ چې په کې د ۳۰ شاو خوا افغان سرتیري ساتل کیدل او هغه یې ټول قتل کړل. ویل کیږي چې د سیمه ییزو چارواکو او طالبانو تر منځ تفاهم شوی وو چې دغه سر تیري خوشې کړي، خو کله چې امریکایان له دغې موافقې خبر شول، په هماغه شپه یې پر زندان برید وکړ.

داسې هیڅ کله نه دي شوي چې د امریکا هوایې ځواکونه دې خپله د امریکا پلي سرتیري د جګړې او یا ګزمې په حال کې په نښه کړي او بیا دې و وایې چې موږ تیروتنه کړې او ساحه مو غلطه کړې وه، خو دا څنګه امکان لري چې هر ځل دې د افغان سرتیرو ساحه او پوستې غلطې کړي؟ ولې په دا ۱۵ کلونو کې یو ځل خپل سرتیري او د هغوی پوستې نه دي غلطې کړي؟ په دې اړه د ارزګان امنیه قومندانۍ د ریزرف کنډک قومندان رحیم الله خان بی بی سی ته ویلي چې امریکایانو په قصدي ډول دغه پوسته باندې برید کړی او له پوستې ۸۰۰ متره اخوا د طالبانو سیمه ده، او دغه پوسته په اساسي او پاخه ډول جوړه شوې وه چې د اشتباه او غلطۍ هیڅ شونتیا کې نه شته.

په افغان سرتیرو باندې د امریکا او ناټو له خوا دغه ډول قصدي او تکراري بریدونه دغه خبره تر پخوا ډیره قوي او کره کوي چې روانه جګړه او نا امني د امریکا له خوا په ډیر مهارت سره مدیریت او پرمخ وړل کیږي. امریکا د خپلو اوږد مهاله او سیمه ییزو ګټو د تامین لپاره افغانستان د یو سیاسي-نظامي سنګر په توګه کاروي او هیڅ کله هم نه غواړي چې په افغانستان کې سوله او امنیت راشي.

امریکا د جګړې دواړه لوري(افغان لاس پوڅي دولت او مخالفین) په داسې متوازن حالت کې ساتي چې یو هم په مطلق ډول پر بل باندې لاس بری نه شي او د (یک قدم پیش، یک قدم پس) سیاست یې غوره کړی دی.

له بل پلوه د جان کیري د حکومت بې حیا او ذلیل چارواکي دومره په خیانت کې ډوب دي چې حتی د خپلو سرتیرو په مرګ او ټپ خبر هم نه دي او د دغه ډول ظالمانه کړنو د لفظي غندلو جرئت نه لري او نه یې کوي. دوی نه غوږونه لري، نه سترګې او نه هم سلیم عقل چې فکر وکړي او دغه ډول دردونه و وینې او احساس یې کړي.

د جان کیري د حکومت غبرګوني مشران په دې سیالي کوي چې کوم یو د امریکایانو لپاره ښه مزدور او خادم کیدای شي، امریکایان له کوم یوه څخه ډیر راضي او خوشحاله دي... دوی د افغان ولس او سرتیرو په غم او فکر کې نه دي، بلکې د خپلې سیاسي بقا په فکر کې دي، دوی یوازې د امریکانو خوشحالي او رضایت غواړي، نه د افغانانو. دوی خاین دي او په خپل خیانت شرم هم نه کوي، دوی د افغانانو له ستر قاتل(امریکا) سره دوستي کوي...

موږ خو پخوا ویلي وو چې د امریکا سره دوستي، د زهرو غړپ دی، امریکا د هرې فتنې تر شا ده او روانه فتنه امریکا رامنځ ته کړې او هغه یې پرمخ وړي. د امریکا د دوستۍ پایله دغه ده چې موږ یې هره ورځ وینو؛ د افغانستان مجاهد او مظلوم ولس هره ورځ د مختلفو نومو او عنوانو لاندې وژل کیږي، یو د طالب په نوم، یو د پلیس په نوم، یو د جاسوس په نوم، یو د تروریست په نوم او... د دې ټولو جنایاتو تر شا امریکا او مسؤلیت یې د امریکا او د هغې مزدور د ملي وحشت حکومت په غاړه دی.

گلځونه

# اسپې زین کړئ

رضوان الله (فیضاني)

ځو غازیانو بیا غزا ته اسپې زین کړئ
وړو سرونه خپل مولیٰ ته اسپې زین کړئ

راشئ راشئ خپلې وینې نذر ورکړو
ښکلي دین د مصطفیٰ ته اسپې زین کړئ

په شرنګا د سپینو تورو راځئ ورشو
اندلس او هم اقصیٰ ته اسپې زین کړئ

د عبرت غابښ ماتوونکی درس پکار دی
هم یهود هم نصارا ته اسپې زین کړئ

په لبیک باندې ځواب ورکړئ ملګرو
تل د الجهاد ندا ته اسپې زین کړئ

خپله تنده او ستړیا به وړو په مینه
هلته جنت المأویٰ ته اسپې زین کړئ

د ژوندون په رنګینو پسې به نه ځو
لا وزګار نه یو خندا ته اسپې زین کړئ

(فیضاني) غوښې هډونه مو ښلي
د مسلم امت بقا ته اسپې زین کړئ

# عاکف مهاجر

# غــزل

اوروي که انګار وي بیا هم دربه شم
درد وي او که دار وي بیا هم دربه شم

تا نه مې دا خپل سر قربان کړی دی
شپه وي که سهار وي بیا هم دربه شم

ته یې زما مینه له تا زار به شم
خیر دی که ګوزار وي بیا هم دربه شم

شور د راکټو کې زه تر تا راتلم
مرګ که ستا په لار وي بیا هم دربه شم

ای د سنګر مینې لیوني دې کړم
ستا غیره که نار وي بیا هم دربه شم

ته راته جنت ښکارې جنت مې یې
تا کې که سنګسار وي بیا هم دربه شم

مینه د عاکف یې د سنګر خاورې
دار که هم تیار وي بیا هم دربه شم

# غزل

جهادمل

اوس مې هم د امتحان میدان ته غواړي
خبر نه دي چې تاریخ مې څومره دنګ دی

زما د توري مړي دومره بې حساب دي
هر میدان مې د دښمن په وینو رنګ دی

کارنامې مې سرکښان له جوشه باسي
چې ګټلی مې همیش میدان د ننګ دی

د ګورګین او مګناټن بر خلیک خپل کړي
چې راکړی یې دعوت ماته د جنګ دی

دې هیواد کښې میړني دومره غوسه دي
چې لوېدلی یې دښمن نن د ګړنګ دی

شازلمي توره په لاس سنګر ته درومي
وخت راغلی پر دښمن بیا د غورځنګ دی

جهادمل همېش بې زار یم د ها خلګو
چا چې ځان ته خوب خوښ کړی دپالنګ دی

# حماسه د رڼا

م.ثاقب

چې یې مرموز حُسن کې ښکاري فلسفه د رڼا
ده د قرآن پاڼو کې نغښتې حماسه د رڼا

ځي یې د هر سورت له نوره د خلوت لپاره
ستا د زړګي تر خانقاه پورې جلوه د رڼا

ستا لامبوزن اروا به وړي تر خپل منزله پورې
د نور په سیند کې هغه ځغلنده څپه د رڼا

چې دې خورې د ایمان وړانګې شي د روح په څانګو
د عشق درسګاه کې به شي ستا بله ډیوه د رڼا

کیف د الهام دی چې یې راوړه د ثریاء له غیبې
اسرار د فقهې د رازونو سلسله د رڼا

چې یې د رب د رضا رنګ دي له حدیثو وړی
شي به دې پاتې پرګنو ته نمونه د رڼا

چې یې مهمل ژوند ته تاپیا ده د معنا نیولې
ده د توحید کلمه ستره مدرسه د رڼا

ثاقبه لمر یې په غروب پسې غروب نه کوي
که غروب وکړي هغه ښکلې پیلامه د رڼا

## #بیتونه

زما سپیڅلي عشق ته ستا خیرن خیالونه ، نه رسي
دغه سادګۍ ته کبرجن خیالونه، نه رسي

دا چې مو زړګي کې راځي شور دالله هو د ویر
دې کیف او حالت ته برخمن خیالونه ، نه رسي

تل راته الهام د تکتیکونو له سبحانه ! شی
ځکه ورته هیڅ د مکناتن خیالونه، نه رسي

**عبید ، ت**

# F16 الوتکه نسکوره
## او اومنه ولسوالی فتحه شوه



ویاړمنو او میړنیو مجاهدینو پرون دپروان په ولایت کې دامریکایی پوځ F16 بم غورځونکي الوتکه کله چې له بګرام هوایي ډګر نه پورته کیده ترهدف ونیوله او رانسکوره یې کړه ، پنتاګون هم دیوې اعلامیې په ترڅ کې دغه پېښه تائید کړه ، خو دنسکوریدو په وجوهاتو یې سکوت اختیار کړی

له بل لوري دمجاهدینو دګړندیو عملیاتو او پوځي لاسته راوړونو په لړکې تیره ورځ دپکتیکا ولایت اړوند ( اومنه ) ولسوالی هم له څلور ورځني محاصري ورسته فتحه ، جنګیدونکي اجیر عسکري یامړه اویا مجاهدینو ته تسلیم شول او ترڅنګ یې ګڼې ډیپوګاني ، وسلي ، مهمات او نورجنګي وسایل او وسایط دمجاهدینو لاسته ورغلل

دمجاهدینو په لاس دامریکا F16 الوتکي نسکوریدا ړومبنی پیښه نده ، دا په افغانستان کې ددریمي F16 امریکایي الوتکي دسقوط خبردی چې پنتاګون یې اوري او زړه یې پرې داغیږي

F16 الوتکه چې له ۱۲۰ میلونه ډالرو نیولي تر ۱۵۰ میلونو پوري قیمت لري امریکایان یې اتل باز اومبارز شاهین بولي ، ویل کیږي چې ایف ۱۶ الوتکه دامریکا یی پوځ له لوري شاوخوا څلورلسیزي وړاندې دالوتکو جوړولومشهور شرکت ( جنرال دانامیکس ) ته طراحي او دجوړولو لپاره وسپارل شوه ،تراوسه پوري ۴۵۰۰ داني جوړي شوي دپلورلو اختیار یې له امریکایانو سره دی ، تراوسه امریکایانو په ترکیې او عربي اماراتو باندي F16 الوتکي پلورلي دي ، معلوماتي سرچیني وایي چې ایف ۱۶ په نورو قابلیتونو سربیره په هواکي هرډول الوتکي هدف ګرځولی اونسکورولی شي او هم له هوانه په ځمکي کي خپل مشخص هدف په ډیري اسانی په داسې حال کې چې رادار خاموش ګرځوي ویشتلی شي .

خو دامریکا همدغه پرمختللي او مغروري الوتکي په افغانستان کې دسربکفه اوتش لاسي طالب په ګوتو راغورځي ، نسکوریږي او دپنتاګون زړه پرې چووي ، ځکه امریکایان په دې باور دي چې دهغوئ مجهز او نازولي ! عسکر بائید ونه وژل شي ، داسې وسایل باید څوک ونلري چې امریکایي الوتکي ، چورلکي او ټانګونه وولي او داور خوراک یې کړي او که فرضا داسې څوک وکړي ، نو به امریکا ورسره په اصطلاح جدي چلند اوبرخوردوکړي !!!!

ولې دتیري یوې نیمي لسیزي جګړي په دوران کي الله تعالی خړپړ طالب ولې دایمان او غیرت په جامه او روحیه سنبال اتل ته دا قدرت او امکانات په لاس کې ورکړل چې هم به د زرګونو امریکایي عسکرو ککري خاوري کوي ، هم به یې دیونیم تریلیون په ارزښت دډول ډول جنګي ستراتیژیانو جوړي باسي او هم به دمزدور رژیم څلورلکه اردو ته داجازه نه ورکوي چې له خپلو سوړو بهر راووځي .

دیوې اونی په اوږدو کي دپکتیا دجانیخلو ولسوالی او هم د پکتیکا ولایت د( اومنه ) ولسوالی فتحه کیدل او په هغو سربیره دایف ۱۶ امریکایي الوتکي نسکورول هغه زیري او فتوحات دي ، چې له شک پرته ورسره دمجاهدو افغانانو زړونه نورله خوشحالی څخه په سینوکې نه ځایږي

کلک باور او عقیده لرو چې که الله تعالی دفتوحاتو داروانه لړی همداسي روانه اوګړندی وساتله ، لیري نده چې امریکا او مزدوران به یې همدا سږ کال په افغانستان کې دحتمي شکست له انجام اوبرخلیک سره مخکیږي او لکه دپخواني شوروي دیرغلګرو لبنکرو دنابودی او تیښتي لار او مسیر به خپلوي.

ان شاالله تعالی

لیکوال: لطف الله خیرخوا

# جهاد پاکستان ته مه منسوبوئ!

له هر ډول محدودیته پاک فکر، برداشت، مشاهده او مطالعه د الله جل جلاله له سترو نعمتونو څخه دي. له همدې ډول وضعیت څخه بې شایبې قناعت زیږي.

ستونزه دا ده، چې کوم موضوعات له هر ډول شخصي، تنظیمي، قومي، سمتي او نژادي محدودیته لوړ دي، موږ یې د وړولو کوښښ کوو او خپلې محدودې پورې یې ایساروو. همدلته د دې کاږه مېتود کارولو کې زموږ عقل و زړه تضاد ته لوېږي.

مثلا جهاد داسې موضوع ده، چې هیڅ شخصي، تنظیمي، سمتي، قومي، نژادي او دولتي چوکاټ کې نه ځاییږي، بلکې خپل احکام او خپل اصول لري، چې فرض شي، په شخص هم لازم دی، په تنظیم، قوم، دولت هم...په ټولو لازم دی. داسې نه شي کېدی، چې جهاد فرض وي، تنظیم دې موقف ونیسي، چې جهاد نه کوو او د تنظیم غړي دې له مسئولیته ورسره خلاص شي. همدا ډول هره محدوده د دا ډول احکامو د تعدیل او تعطیل واک نه لري. دا چې موږ د جهاد مطالعې ته افاقیت نه لرو او ډول ډول محدودیتونو زموږ ذهنونه نیولي، نو څوک وايي، چې دا د پاکستان کارونه دي!! څوک وايي دا یوه نړیواله پروژه ده!! څوک وايي دا...

دا خبرې څو ډوله خلک کوي. په سر کې یې هغه جنایتکاران دي، چې یرغلگرو دولتونو ته د خپلې غلامۍ او چوپړ جنایت پټوي. ورپسې هغه ډله ده، چې خپل کاږه منهج ته د برائت دلیل لټوي او دریېیم هغه خلک دي، چې ساده فکر کوي او په پټو سترگو خپلو سرلارو پسې روان دي.

دا خلک دې لږ فکر وکړي، چې څه وايي؟ او ولې یې وايي؟ له دې فکره وراخوا یې زه داسې جنایتونو ته پام وراړوم، چې هیڅکله به یې مسلمانان ورته ونه بښي. دوی به نه پوهیږي، خو پوه دې شي، چې دا دوه عقیدو جگړه ده، دریېیم ځای نه لري، خو که دوی بیا هم د خپلو جنایاتو د پټولو په موخه دا جهاد پاکستان ته منسوبوي او د دې لپاره چې عاطفي خلک یې زر ومني، نو یاد دې لري، چې دا خلک څو عظیم جنایتونه کوي :

### د جهاد حکم پټوي

دوی فکر کړی، چې دا جهاد څه وخت عیناً فرضیږي؟ یو کافر چې په زور او تغلب ستا په کور د لمبو او بارودو غلبله کې درننوځي او همغه خلک وژني، نیسي- او سپکوي، چې د دوی د عقیدې او کار مخالف وي، د جهاد حکم دا مهال څنگه څوک تعطیلولی شي؟

د جهاد په اړه شرعي مکلفیت که اوس نه وي متوجې، نو څه وخت دی؟ هغه حالت څوک تشریح کولی شي، چې جهاد په کې فرضِ عین گرځي او دا مهال د افغانستان مسلمانان ورسره مخ نه وي؟

زه خو هغو نیمه اسلامپالو ته حیران یم، چې افغانستان کې د امریکا د دایمي اډو خلاف دي، په حرمت کې یې تر ټولو مخکې فتواوې صادروي، خو د همدې خلکو پر ضد جهاد پردۍ دسیسه او کار گڼي!!

دا خلک د اسلام پر ضد فکري یرغل کې هغو خلکو سره مستقیما شریک دي، چې د جهاد د احکامو تعطیل په دې کوي، چې دا جهاد پاکستان ته منسوب کړي. څه خبر چې دا خلک په څه قانع دي؟ په دې قانع دي، چې د دوی «دعوتي منهج» د دا ډول کارونو اجازه نه ورکوي؟ دا ضمیر او وجدان هم دوی ته څه نه وايي؟ دوی د لمونځ، زکات یا بل فرض په اړه د خپل خاص منهج خبره کولی شي؟ که یې کولی شي، د ټولو فرضي عباداتو په اړه دې خپل ځانگړی منهج راوښیي او که یې ناروا بولي، نو فرضِ عین جهاد کې څنگه ځان ته د خپل ځانگړي منهج اجازه ورکوي؟ دوی د هغو نصوصو په ایینه کې ځان څنگه ویني، چې د احکامو د پټوونکو په اړه غبرېږي؟

## د یرغلګرو حکم پېټوي

په شریعت کې د هغو خلکو حکم صاف سوتره معلوم دی، چې کفر یې بواح وي، خپلې سلاح او قوت سره د مسلمانانو په حرمتونو هر مهال او هر ځای تېری کوي.

دا خلک چې د یرغل ټولو جنایتونو کې ورسره شریک دي او دا خلک چې د یرغل پر وړاندې له مېړانې بې برخې دي، کوښښ کوي، چې د یرغلګرو حکم پټ کړي.

ښکاره خو نه شي ویلی، چې دا امریکایان او اروپایان نه دي یا یې یرغل نه دی کړی یا یې افغانستان کې خپل شوم اهداف نه شته یا دا کفار نه دي، مګر همدا خبره په بلې خبرې پټوي، چې دا جګړه پاکستان کوي!!

زه دوی ننګومه، ځواب دې راکړي؛ که تاسې د کافرو یرغلګرو کار نه توجیه کوئ یا یې حکم نه پټوئ، نو د دوی د یرغل پر وړاندې جهاد ولې بل چا ته منسوبوئ؟ که تاسې په داسې حیلو د کفر سلطه توجیه کوئ، ځانونونه مسلمانان څنګه بولئ؟ همدا رضا په کفر نه ده؟

څه کوښښ کوئ، چې ګوندې دا دعوه به تاسې وطندوستان معرفي کړي؟ تاسې ته چې په څښور لوټ د شپې خوب در نه شي، خدای خبر که د وطن په مینه ارام احساس کړئ. ګورئ هر یو ځان ښه پیژني، ځان سره محاسبه وکړئ،چې تاسې د وطن مینې دې خبرو ته مجبور کړي یاست که کوم مادي



احتیاج؟ یا بې ننګی؟ که نن خبره پټوئ، خبر یاست، چې تاسې کومې محاسبې سره مخامخ کېدونکي یاست؟ داسې محاسبه، چې د زړه رازونه راباسي، پټ نیتونه ښکاروي او له ادمه تر دې دمه او تر قیامته مخلوق مخکې به ولاړ یاست!

### د ولس په حافظه ملنډې وهي

د وطندوستۍ تر پردې لاندې او په هغه طریقه، چې کوم ساده یې ومني، کوښښ کوي تاریخ له خلکو هېر کړي!! دوی څه فکر کوي،چې دا ولس دومره بې حافظې دی؟ څه وایي، چې دې ولس خپل افتخارات، غزوات او سوبې هېرې کړي؟ په همدومره ساده حرکت، چې دا کار پاکستان کوي؟ د دې خاورې هره مورګه او کړلېچ د دښمنانو د شرمساره تېښتو شاهدي نه ورکوي؟ دې خلکو میرویس، غزنوي، ابدالي، ایوب خان او ...هېر کړي؟

هغه وخت پاکستان چېرته و؟ هغه وخت چا دې ولس ته ویلي وو، چې تاسې مسلمانان یاست، یرغلګر مه پرېږدئ. هغه وخت استخبارات چېرته ول؟ کوم جنرال دې ولس ته ویلي وو، چې هلئ ډیلی ووهئ! هلئ پاني پت ته لاړ شئ! هلئ اصفهان ونیسئ! چا ورته ویلي وو؟ پیسې چا ورکولې؟

تر ټولو مهمه؛ فکر کوئ،چې شاه شجاع به دې ولس هېر کړی وي؟ هغه که په دې دلیل «شاه شجاع» شو، چې د ګاونډیو د مخنیوي په دلیل یې قوي دوستان (انګرېزان) هېواد ته راوستل، تاسې په کوم دلیل ځان له دې شرمه پاکوئ، چې د ګاونډیو د مخنیوي په دلیل مو قوي دوست(امریکا) سره لاسلیک وکړ؟ څه فکر کوئ، ولس ویده دی؟ تاسې د خپل تاریخ پاڼې لېدې واړوئ، چې شاه شجاع د خپلې کارنامې لپاره څه دلیل وایه؟

ای ستاسې د قوي دوست په شتون او حاکمیت کې ستاسې دا خبره څه معنا لري، چې دا جګړه پاکستان کوي؟ ځان مسخره کوئ، که ولس؟ د دومره ستر شرموونکي حالت په اړه درته دا خپل ولس دومره بې ارادې بریښي؟ دومره درته له ځانه ناخبر ښکاري؟ اصلا تاسې د دې ولس په منځ کې د دې ولس د دښمن په ژبه غږېږئ او کوښښ کوئ خپلې دښمنۍ ته پرده ولټوئ، مګر دا پرده به درنه د تل لپاره پورته وي او د تل لپاره به د دې ولس تاریخ تاسې لوڅ لپړ محاکمې ته ودروي!

### افغانان بې ثقافته ګڼي

داسې ښکاروي، چې ګوندې افغانان هیڅ ثقافت نه لري. تاسې خپل ادبیات وګورئ، چې په کومه اندازه د رزمي نفسیاتو ښکارندوی دي. ستاسې نیکه امیر کروړ په څه وياړي؟ د ځان د ساتلو

لپاره د کوم زورور سیوري ته ځان پټول ورته ښه ښکاري او که یې د کومې جونې په محبت کې قصیدې ویلې؟ او که یې حماسه او ننگ خپل افتخار گڼلی؟ څه وایي :

زه یم زمری په دې نړۍ له ما اتل نه شته

بل په زابل نه شته

په هند وسند په تخار و په کابل نه شته

له ما اتل نه شته

تاسې دا شعر ټول لوستی؟ دا دپښتو ژبې تر ټولو لرغونی شعر دی. دې شعر کې امیر کروړ خپلې جهادي کارنامې یادوي، د دښمن راپرزول یادوي، خپلې توري او مېړانې یادوي. دا خو پرېږده تاسې خوشال خان په کومو سترگو مطالعه کوئ؟ د هغه دېوان ته په کومو سترگو ورگورئ؟ د هغه دا بیتونه مو کله لوستي؟

د فساد فکر مې نه شته خدای حاضر دی
خپل ساعت به تېروم عمر اخر دی
اطاعت د اولو الامر ځکه نه کړم
خلیفه د زمانې په زړه کافر دی

که نه کوښښ کوئ، دې ملت ته نوی ثقافت جوړ کړئ؟ نوي ارزښتونه ورته پیدا کړئ؟ د ژوند نوې فلسفه ورته جوړوئ؟

گورئ دا ولس تاریخ لري، اصیل ثقافت لري او دا صلاحیت لري، چې په عملي میدان کې خپل ثقافت وتاریخ ترجمه او تفسیر کړي. تاسې که له دې



برخې محروم یاست، مهرباني وکړئ، ځان دې ولس ته مه منسوبوئ او د دې ولس د محبت په دلیل د دې ولس په تاریخ وثقافت ملنډې مه وهئ. دا جرم به درته هیڅوک ونه ببښلی شي. تاسې که د علم په نوم دا ولس «جاهلیت» ته ټېل وهئ، نو یاد لرئ، چې دا ولس د ایمان په اړه هر «جاهلي» فکر په لغته وهي. کوښښ مه کوئ، چې په پردیو ارزښتونو د دې ولس ثقافت واړوئ. شرم دی!

## د افغانانو افتخار تروړي

افغانان د خپل شریعت په حکم او د خپل تاریخ وثقافت په تسلسل دې مېړانې ته ولاړ دي. دې مېړانه کې له الله جل جلاله پرته د هیچا احسان او منت پر ځان نه مني. هغه خلک، چې ځانونه د افغان دوستۍ جامه کې تېرباسي، څنگه به یې دا ولس وبښي، چې د دوی افتخار مفتو کې بل ته ورکوي؟

هغه خلک چې د خپلې غلامۍ او د کفر د خدمت جنایت پټوي، په ډېر مهارت د ځان د سپینولو کوښښ کوي، مگر نه دي پوه، چې د تاریخ ذره بینې سترگې به یې رسوا کړي...نه دي پوه، چې د هغه شاه شجاعخېلو کتار ته به ولوېږي، چې کړوسي به یې له شرمه نسب پټوي.

تاسو ځان پوښتلی، چې ولې دا کارنامې پاکستان ته منسوبوئ؟ ولې هغه چا ته دا کرېډټ ورکوئ، چې تاسې یې خپل دښمن گڼئ؟ څنگه یې د ځان په مقابل کې فاتحین معرفي کوئ؟ تاسې همغه وظیفه نه کوئ، چې مجاهدین پرې تورنوئ؟ شاوخوا وینئ، چې دا خبره څه ډول خلک تکراروي؟ خپلې خبرې هم لري؟ روزي یې حلاله ده، که د نړېوالې کفري غَلَبَلې له فنډه یې خوري؟ او په همدې یې خوري، چې د مُرجِفینو کار وکړي؟

هغه د کاږه منهج اسلامپالي به څه کوي؟ دوی په داسې یوه معرکه کې د کفر تلې ته په تیاره کې د کاڼي اچولو کوښښ وکړ، چې اخر یې هم مسلمانان فاتحان دي. وایه چې هغه مهال به ستا څه ځای وي؟ په کومو سترگو به ورسره مخامخ کېږې؟ د هغه شهید بچي سره به په کوم ضمیر د دې سوبې ترانې وایې، چې د پلار د شهادت پر مهال دې د هغه پر مېړانه اعتراف قدرې هم نه کاوه، بلکې د پلار شهادت دې ورته په نورو پلوره؟

په فلسطین، سوریه او مصر کې دې ده ورته مېړانه په هر چوک کې زمزمه کړه، مگر د خپل شهید وینې پسې دې خندا وکړه..د دسیسې او لوبې قرباني دې وگاڼه!!

سر مو خلاصیږي، چې د کومو جنایاتو مرتکبین یاست؟




غوارم چې څو مهمو نقطو ته دې متوجه کړم، ترڅو د دنیا او آخرت له ملامتی، شرم او عذابه خلاص شې...

#عسکره

ته ددې ملت بچی یې خو د ددې ملت د ازلي او ابدي دښمنانو په صف کې ولاړ یې.

#عسکره

ته د یرغلگرو صلیبي کفارو ترڅنګ د خپل مؤمن ملت په مقابل کې ولاړ یې.

#عسکره

ته د څو پیسو لپاره د صلیبي لښکرو سره یوځای شوی یې.

#عسکره

تا په هغه صلیبي جنګ کې د یرغلگرو سره شرکت کړی چې احمق بوش یې په ۲۰۰۱م کې اعلان وکړ.

#عسکره

ته اوس په ناپوهی سره د صلیب څخه دفاع کوې.

#عسکره

ته اوس د صلیبیانو حقیقي ملګری یې او هغوي تاته د ملګري په نظر ګوري.
او الله فرمايي: ( و من يتولهم منكم فإنه منهم)

#عسکره

که ته چیرې د هغوي ملګرتیا ته دوام ورکړې نو ستا مرګ هم د هغوي په شان دی، ستا او دهغوي مسیر به یو وي.

#عسکره

ته د خپل وطن او خپل مومن ولس په مقابل کې جنګیږې.

#عسکره

ستا شرابي آفسران تاغولوي او تاته وایي چې ته د وطن څخه دفاع کوې، حال داچې ته د وطن د حقیقي مدافعینو په مقابل کې جنګیږې.

#عسکره

ته د هغه چا مقابل کې جنګیږې چې نه غواړي صلیبي ښکیلاک د په دې وطن کې پاته شي.

#عسکره

ته د هغه چا په مقابل کې جنګیږې څوک چې په دې وطن کې کفري ډیموکراسي نه مني او د الهي نظام غوښتونکي دي.

#عسکره

آیا ته پوهیږې چې ته د کوم نظام د نفاذ لپاره قرباني ورکوې...

#عسکره

ته د کفري ډیموکراسی [ جمهوریت] په لار کې قرباني ورکوې، کوم چې یو کفري او شرکي نظام دی.

#عسکره

ته ددې کفري نظام څخه دفاع کوې... او په دې لاره کې وژل کیږې.

#عسکره

ته پوهیږې چې ستا اجیر مشران تا غولوي چې ته د پنجاب خلاف جنګیږې.

#عسکره

ته به خبر یې چې تاسې، صلیبیان او پنجاب ددې وطن د ازادۍ غوښتونکو په مقابل کې یوځای جنګیږئ...

#عسکره

ته به خبر یې چې ستا مشرانو ددې وطن دیره خاوره په پنجاب وپلورله.

#عسکره

ته به خبر یې چې ستا مشران د پنجاب په شمول د۵۲ څخه د زیاتو هیوادونو غلامان دي.

#عسکره

اوس ته د پنجاب خلاف نه بلکه د اسلامي نظام غوښتونکو خلاف جنګیږې.

#عسکره

ته ددې وطن د اصیلو بچیانو سره جنګیږې.

#عسکره

ستا لاسونه ددې وطن د اصیلو بچیانو په وینو سره دي.

#عسکره

ته د څو زرو افغانیو لپاره د خپل ولس په مقابل کې جنګیږې.

#عسکره

بس کړه...
راشه لاس واخله ددې جرمونو...
نور د دښمنانو ددې پلیت صف نه راووځه...
د کفارو غلامي پریږده....
د کفري نظام دفاع څخه راوګرځه...
پریږده نور د اسلامي نظام مخه مه نیسه...
راشه له خپل ولس سره یوځای شه...
نور ددې بیچاره خلکو له وژنې لاس واخله...
دا مظلوم ولس نور مه آزاروه...
بس ده...
که نه نو...
سبا به د خپل ولس مخ ته ملامت او شرمنده وې لکه کمونستان چې شرمنده او ملامت وو...
او که چیرې په دې لاره کې ووژل شوې نو د قیامت په ورځ به هم ددې کفارو سره حشر کیږې او د هغوي څخه به شمیرل کیږې او مسیر به د د هغوي په شان وي.

عارف عرفان

# چشـــم انداز خروج ترکیه از پیمـان ناتو

ژورنالیست‌های المان ودیپلماتهای غربی بطور مشترک وبطرز وحشتناک درین نگرانی بسر میبرندکه"آنچه که دیروز تصور نمی شد حال به یک واقعیت مبدل شده است." برپایه منابع وبگاه politikus.ru روسیه وبا اقتباس از وسایل جمعی آلمان ، نزدیکی آشکار انقره وماسکو خشم اعضای پیمان ناتو را برانگیخته است ،امابخاطر اوضاع کنونی بین المللی ،کشور های عضوناتو ناگزیر اند تا رفتار حقارتبار انقره را تحمل نمایند که درین بحبوحه رسانه های المان نگران از دست دادن "اتحادناتو " میباشند.

قرار است به تاریخ نهم اگست رییس جمهور روسیه با اردوغان در سنت پطربورگ ملاقات نماید.متعاقبآ به تاریخ ۳۱ اگست بنابردعوت اردوغان ،ولادیمیر پوتین عازم ترکیه شده ویکجادر شهر انتالیا بازیهای دوستانه فوتبال میان تیم های ملی ترکیه-روسیه راتماشا خواهند نمود.

برعلاوه ملاقات های دیپلماتیک میان دورهبر که منتج به از سرگیری تشریک مساعی اقتصادی بویژه در خصوص بزرگترین پروژه لوله گاز"جریان ترکیه " و احداث نیروگاه آکویو "خواهد شد برای اعضای ناتو رنجش آور خواهد بود.از سوی دیگر پیشبینی کاهش قطب انرژی و امنیت آن نگرانی های شدیدی را در محافل المان ایجاد نموده است.

همچنان تقابل وگرفتاری نظامیان هوادار گولن در ترکیه ظاهرآ باعث نگرانی آمریکای ها نیز شده که درین خصوص Games R.clapperمدیر اطلاعات ملی آمریکا

نگرانی خویش رادر خصوص وقایع کودتا اظهار نموده گفت :" تعداد زیادی از شرکایی ما، یا وظایف خود را از دست داده اند ویا زندانی شده اند."

کلپر همچنان میپندارد که روسیه از وضع موجود وسردی مناسبات میان غرب وترکیه سود برده ودر جهت ایجاد شگاف در پیمان اتلانتیک شمالی اقدام خواهد کرد،به همین رو ناتو اماده است تا در برابر خشم و غضب اردوغان از خود شکیبای تبارز داده تا مبادا تهیگاه جنوب شرقی خویش را درخط جبهه آنچه _«تهدید روسیه »تلقی میشود قراردهد.

کارآگاه علوم سیاسی آلمان بنام Alexander Raher

معتقد است که ترکیه هرگز کودتای دوم آمریکا را از خاطرش بیرون نخواهد کرد. هرگاه چنین پنداری بوجود آید که امریکا در عقب این کودتا(۱۶جولای) بود،آنچه که در کودتای سالهای هشتاد سده بیست اتفاق افتید وامریکا فرمان انرا صادر نمود،درین صورت خروج ترکیه از ناتو شاید از اجزای اجندای موجود باشد.

نخست وزیر ترکیه بیلدریم در حال آماده سازی مواد برای اثبات دخالت گولن در کودتا و استرداد آن از ایالات

متحده آمریکا میباشد،اما برای مقامات ترکیه کسب رضایت دولتمردان قصر سفید برای استرداد گولن مهم نیست.

نخست وزیر ترکیه تهدید نمود در صورتی که ایالات متحده امریکا از استرداد گولن اجتناب نماید روابط دوجانبه دوکشور بطرز سریع سرد شده صدمه خواهد دید.او خاطر نشان ساخت : زمانی که ایالات متحده امریکا بعد از یازدهم سپتامبر به افغانستان حمله نمود به هیچ ثبوت یی نیاز نداشت.

آگاهان امور به این عقیده اند که ترکیه بخاطر خستگی از برخورد های ریاکارانه غرب وعدم مساعدت اقتصادی انها که همیشه به تقاضاهای ترکیه نه گفته اند،به منظور ثبات اقتصادی خویش ممکن ایجاد روابط حسنه خود را با « سازمان همکاریهای اقتصادی شانگهای» ویا «انجمن اقتصادی شرق آسیا »آغاز نماید.

ازمون بزرگی که در برابر پالیسی خارجی ترکیه قرار دارد عبارت از " سر" گولن میباشد.هرگاه امریکای ها از خواست ترکیه مبنی بر استرداد" اسلامگرای پنسیلوانیای"اجتناب نماید ،درانصورت چیزی دیگری برای اردوغان باقی نمی ماند جز اینکه به حسن روابط خویش با روسیه ادامه دهد.

درحال حاضر ،خروج‌ترکیه از ناتو ظاهرآ باورنکردنی بنظر میرسد اما با توجه به اظهارات دیپلمات غرب:"آنچه که تصورش دیروز نمی رفت حال به واقعیت مبدل شده است. "گشایش پنجره برای خیزش ترکیه از پیمان ناتو به سرعت شتاب میگیرد.

اردوغان با بازیهای متناقض خود با گولن میتواند به حیث «قطعه رانده شده » در درون ناتو مورد استفاده قرار گیرد.رییس جمهور ترکیه بر بنیاد نگاه کوته بینانه وحس خودخواهی که هنوز یک چهره یی موقت در سیاست جهانی محسوب میشود ،مگر زمان موجود برای او چنان اختصاص یافته است تا وی برای منفعت روسیه مورد استفاده قرار گیرد."قایق ترکیه" میتواند" شاه سفید" را مدد نماید تابرنده "گیم جهانی " شود.

# د شکست نبنه ...!

نن سبا د مجاهدینو د فتوحاتو او پرمختګونو خبرونو ډېر زور اخیستی دی ،،،، که څه هم د اشغالګر سرکار رسنۍ ډېر زیار باسي چې خبرونه سرچپه نشر کړي ترڅو له خلکو حقایق پټ کړي ،،،، مګر خو نن سبا بیا د خواله رسنیو له لاسه د هغوی هیڅ دم وچوپ نه چلیږي ، په فیسبوک کې چې ګوري هر دویم خبر به د مجاهدینو د کامیابو عملیاتو خبر ویني ،،، مګر لاندې به سرکاري سیکولران فقط ښکنځلې ورته لیکي ، نو سړی له ورایه پوهیږي چې

دا ښکنځلې او بدې خبرې کول پخپله د دې نبنه ده چې خلک ډېر وارخطا دي ، کنه نو چې یو څوک څان حکومت ګڼي ، هغه بیغیرته به هم دومره بې همته او بې حوصلې وي چې بله خبره یې نه وي زده ، فقط فحش ښکنځلې کوي ...... ګرم خو ځکه نه دي چې له خدای ج نه خو هسې هم دوی نا امیده دي ځکه چې دوی پوهیږي چې خدای تعالی هیڅکله له باطل ، مرتد او منافق سره مرسته نه کوي ،،، خو خبره دا ده چې اوس هغه امریکایان چې دوی ورباندې نازیدل ؛ هم په ګونډو ښکاري ، نو بده ورځ ضرور ورباندې راغلې ده ، نور یې اعصاب کار نه کوي یوازې همدا د ښکنځلو او بدو خبرو تنګه لاره ورپاتې ده، دې بې هدفه سیکولرانو ته !

# په رېښتیا چې قیمتي غمی و

لیکوال: صفي الله رائد

د يو لوی علم سرېبره فصيح او بليغ مقرر هم و، ذهانت او تقوی يې اوج ته رسېدلې وه، په اهل سنت والجماعت کې يو منل شوی مناظر ګڼل کېده، په رېښتيا چې نمونه يې احناف و، په رېښتيا چې وکيل احناف و، شهيد شيخ القران والحديث غلام حضرت غلام الحنفي، يادوم.

په رېښتيا چې قيمتي غمی و.

شهيد شيخ صاحب سره ما په لمړي ځل د خټکو پل پاچا صاحب مدرسه کې چې د ميلاد النبي جلسه وه، په داسې حال کې وليد، چې جلسه ښه په جوش کې روانه وه، په زرګونو طالب العلمان ورته راغلي ول،ډېری افغاني مشائخ کرام هم جلسه کې حاضر و، چې د جلسې په جريان کې ګڼه ګوڼه شوه، او ټول طالبان د احترام او ادب په خاطر ودرېدل ، ويل يې: شيخ صاحب راغی، شيخ صاحب د ممبر ښي اړخ ته کېناست او تر لګ انتظار وروسته ورته د تقرير بلنه ورکړل شوه.

شيخ صاحب لا تقرير نه و شروع کړی چې د څنګ يو طالب راته وويل: شيخ صاحب يو قيمتي غمی ده.

شيخ صاحب تر بلنې وروسته له مشرانو شيوخو په عاجزی د تقرير اجازه واخيسته او په موسکا موسکا سټېج ته راغی. تورې سترګې، توري څڼې، او ښکلی غټ زيړ پټکی يې پر سر و، دنګې ځوانۍ يې د ده ښکلا لا يو پر دوه کړې وه، ما يې چې نوراني مخ ته کتل مينه مې پرې راغله، ځکه چې ټوله جلسه پرې ښايسته ښکارېدله،مخامخ سټېج پرې ښکلی برېښېده.

ما يې چې کله په ښکلي انداز کې تقرير وارېد،حيران يې کړم، داسې له واقعيت او حقيت نه ډک مدلل بيان يې وکړ، چې زما په زړه کې يې نوې هيلې را وټوکولې، ډېر ورته خوښ شوم، زړه مې راته ويل چې افغانان څومره بختور دي چې دداسې قيمتي غمي څخه برخمن دي، د تقرير تر اورېدلو وروسته مې د څنګ ملګري ته وويل: شيخ صاحب په رېښتيا چې قيمتي غمی ده، هغه راته کړل خبرې يې هم ملغلرې دي، دا غالباً ۲۰۱۱ء کال و.

تر دې وروسته مې ډېر ځلي بيا وليد، څو وارې يې دليدلو لپاره خپلې مدسې ته ورغلم، او کومې جلسې ته به چې شيخ صاحب د تقرير لپاره دعوت و،نو زه به هم دې ده دليدلو په خاطر هغې جلسې ته ورتلم، ځکه ډېر راباندې ګران شوی و،او د ګرانښت وجه يې دې ده علم او تقوی وه. ډېر خوښ مزاجه او خوش اخلاقه انسان و،چې کله به هم زه ورسره مخ شوم نو موسکی به شو، او را ته به يې ويل: قاري صاحب څنګه يې؟ خير دی؟ سبقونه مو څنګ روان دي؟ دغه پوښتنې به يې رانه په موسکا موسکا کې کولې، او زه به يې ليدلو ته دومره خښ وم چې مابه يې جواب په ژبه نشوی ورکولی ، بس هسې به مې ورته بې اختياره کتل، په ديدن به يې نه مړيدم، د خبرو به يې تږی او د ليدلو به يې وږی وم، ځکه چې الله پاک ده ته څمره لوی علم ورکړی و، همدومره يې په اخلاقي لباس هم ښکلی کړی و.

داچې له علم سره د تصوف خاوند هم و، دظاهري ښکلا سربېره په باطني ښکلا کې هم پټ و.

په همدې وجه خو قيمتي غمی بلل کېده، داسې يو قيمتي غمی چې اوسني عصر کې ترې يواځې افغانان برخمن و، دا داسې يو غمی و چې ورځ تربلې يې ښکلا زياتېده او لا پسې قيمتي کېده.

دا سپېڅلی غمی له ډېره وخته د مکار دوښمن تر ښار لاندې و، ځکه دوی غوښتل چې دا پاکيزه غمی مات کړي، ځکه چې د همدې پاکېزه غمي شعاو يې سترګې برېښولې او سوزولې،

چې بلاخره يې د تېرې جمعې مبارکې په ورځ د جمعې له لمانځه وروسته يې په داسې حال کې چې پلاريې هم ورسره و، شهيد کړ.

انا لله وانا اليه راجعون.

روح يې ښاد يادونه به يې تل وي.

# هغه اردو

## چې امریکا روزلي اوجوړه کړې وه، اوس دتیښتې او شړیدو په حالت کې!!

امریکایان وايي چې له ۲۰۰۱ کال راهیسې یې دکابل رژیم داقتصادي او پوځي وړتیا او پیاوړتیا په خاطر (۱۱۵) ملیارده ډالر ، دخپل پوځ له لګښتونو څخه علاوه ور کړي ، چې په هغوکې شپیته فیصده مصارف دملي اردو دروزلو ، تجهیز او له طالبانوسره دجګړې په برخه کې وه،خواوس داسې ښکاري،چې په اردودغه پریمانه لګښتونه اودروزنې بیلابیل مراحل بې موروده او بې اغیزي وو

دپنتاګون جنرالانو باور درلود، چې څلورلکه مجهزه اردو به دطالبانو په وړاندې څرګند بریالیتوبونه ولري اوطالبان به پرې نږدې چې دجګړې ابتکارخپل کړي اومهمې سیمې لاندې کړي ؛خو روان وضعیت اوپه ګڼوسیمو کې دمجاهدینو پرمختګونو دامریکایانو لپاره زیاتې پوښتنې او اندیښنې راولاړې کړې.

نیویارک ټایمز دهمدې اونې په یوه تبصره کې دلوړ پوړو امریکایي چارواکوله خولې وايي:

دهلمند په ولایت کې طالبانو چې کله وغوښتل سیمې ونیسي له ړومبي ګوزار سره اردو خپلې غښتلي مورچې او پراخې سیمې یې له لاسه ورکړې ، څه ورته تسلیم شول او څه وتښتیدل ، خبره تردې ورسیده، چې دافغانستان په ستراتیژیک ولایت هلمند باندې دلښکرګاه له څو ښاري حوزو اودولتي ودانیو پرته په ټولو ولسوالیو اوسیموطالبانو دخپل واک اوسلطې دائره پلې اوتطبیق کړه .

جنرال پاول ګرید دپنتاګون داسیایي برخي د سیاسي اوپوځي مطالعاتو اوڅیړنو دبرخې غړي ورځپاڼې ته ویلي: له هلمند ورسته په بغلان ، کندوز ، ننګرهار ، نورستان اوپکتیا کې هم اردو دطالبانو په مقابل کې شکست خوړلی ، څکه ګڼې سیمې هلته داردو له لاسه ووتلې

نوموړی زیاتوي ، ددې امکان شته طالبان کندوز اوبغلان دواړه ونیسي اوددغو دو ولایتونو له سقوط سره په شمال کې دپاتې ولایتونو سقوط هم تړلی او کلک ربط سره لري .

دکابل رژیم د ۲۱۵ قول اردو قوماندان جنرال نعمت الله له رسنیو سره په خبرو کې داردو ورستې ماتې منې ، دلیل یې داوایي ، چې مونږ طالبانو تیرایستلو اوپه اغفال کې یې وغورځولو ، مونږ دافکر کاوه چې طالبان به سږ کال صرف له خپله ځانه ددفاع ستراتیژی ولري ،څکه هغوئ خپل مشر له لاسه ورکړ اوبریدو نه به یې ترډیره بریده چریکي ووسي ، برعکس طالبانو یوناڅاپه دهیوادپه څوجبهوکې په تهاجمي عملیاتو پیل وکړ

دچارو دماهرینو له انده ، شک نشته چې دقیادت له اړخه اسلامي امارت له مهمو ازمیښتونو سره مخ شو، داسلامي امارت موسس عالیقدرامیرالمومنین ملامحمدعمر مجاهد وفات او بیا دعالیقدر امیرالمومنین ملااخترمحمد منصور شهادت دواړه هغه درنې پیښې وې چې دمسلمانانو او بیا په خاص ډول داسلامي امارت دمسؤلینواو مجاهدینوزړونه یې ولړزول، خوداچې داسلامي امارت اساس اومسیر ډیرسپیڅلی او هغه په دیانت اوپاک هدف ولاړ دی

نوالله تعالی یې هیڅکله دیوه مشر اوقائیدپه وفات اوشهادت نه متزلزل کوي ،که له یوه لوري دغه ډول صدمه ویني الله تعالی له بل لوري ورباندې دنعم البدل لورینه کوي .

مونږچې کوم فتوحات اودمجاهدینوروانې بریاوې وینو ، پرته لدې چې صرف الهي نصرت او دافغان ولس داخلاص او دعاګانو وجه یې وبولو بل دلیل او عنصر پکې نه ځاییږي ، څکه کوم امکانات اووسائل چې اشغالګر او ددوئ ګوډاګیان یې لري، دمجاهدینو ، وسلي ، تجهیزات او مالي امکانات یې په هیڅ ډول دپرتلې او مقایسې وړ نه دي.

مونږ امریکایانو او دناټو واکمنو ته وایو دکابل په اردو اورژیم مو چې تردې دمه څومره ډالر لګولي اوڅومره وسلې او وسایل مودهغوئ په اختیارکې ورکړي،که لس برابره یې نورهم ورته زیات اوپراخ کړی .

کلک باور ولرئ چې تاسې او ستاسې دغه حلقه بګوشه اردو او رژیم به دمجاهدینو په هیڅ بیه مقابله ونشي کړای ، څکه معنوي قوت او الهي نصرت له طالبانوسره شامل حال دی دی اوتاسې ورنه رټل شوي اوبې برخې یاست اوچې له چا سره الهي نصرت او مرسته ملګري وي، هغه به اورومرو په طاغوت او د طاغوت په لښکرو بریالی کیږي او ورستی فتحه به هم ددوئ په برخه او نصیب وي. (ان شاالله تعالی)

# ولس له چا سره دی؟

د خړې ججرې خړ طالب

د دې پوښتنې خواب ماته دوه ډوله د ذهن په تخته ځي او راځي کله مې په ذهن کې يو شان خطور وکا، کله بل شان آخر په دې کې ورک شم چې څه قسم تعبير تري وکړم؟ او څه ووايم؟ داسې ووايم چې ولس د چاسره دی؟ او که داسې تعبير وکړم چې طالب له چاسره دی؟ يا په بل تعبير

## له ولس سره څوک دي؟

څکه طالب د دې جامعې لپاره د يو مقدس عنصر ـ په شان ارزښت لري طالب اصلاً د افغانستان د خلکو لپاره چې په دين مَينه ټولنه ده د عقيدې شکل اختيار کړي، طالب اصلاُ د دې ولس دين دی، د افغانانو ايمان دی، د ولس عقيده ده، د دې ولس اسلامي او ملي مقدسه عنعنه ده! او د اسلامي شعائرو څخه يو عظيم الشانه شعيره ده. نو پدې حساب او له دې نقطې که ورته وگورو بيا نو زما دا خبره او تعبير سم دی چې *طالب له ولس سره دی* څکه طالب د ولس لپاره چې په دين مين ولس دی، او دغه ولس په دين باندې د قربانيو په ډگر کې د مخکښ اتل حيثيت لري، نو د داسې ولس لپاره طالب د دين، عقيدې، مذهب، او اسلام حيثيت لري. اوس که چيرې مونږ د افغاني ولس په حق کې داسې الفاظ وکاروو چې زمونږ ولس داسې دی چې دين له دوی سره دی، مذهب له دوی سره دی، عقيده له دوی سره ده، په دين باندې دقرباني او سر ښندنې فکر له دوی سره دی، اسلام په دوی کې او له دوی سره دی نو بيا دا هم ويلی شو چې طالب د ولس سره دی.

او که خپل دې نږدې تير تاريخ ته ځير شو، په غور فکر ورته وکړو، د انصاف څخه کار واخلو نو ضرور به ټول دا خبره که مونږ د نظر په لحاظ د طالب سره جوړ وو که ناجوړ، ومنو چې ولس د طالب سره دی او دا خبره تر لمر واضحه ده.

زه به د دې لپاره درې ساده مثالونه پيش کړم چې دا پوښتنه په ساده شکل خو د حقيقت سره برابره ځواب کړی، تر لغت پرانی او الفاظ جوړيدنې به تيرشو ليکوالي به د حقيقت جونگړه وبولو ساده خو په واقعيت پوښلي، او په صداقت باندې ولاړ او زرين الفاظ به استعمال کړو، داسې به نه کوو چې د واقعيت اړخ يې خپن او د ليکوالی طرف يې زرين او برابر وي، د الفاظو د جوړيدو په فکر واقعيت او سوچگی ترپښو لاندې کړو پدې باب به هم د خپل گران او محبوب رهبر ساده ملاصاب شاگردي اختيار کړو چې خبره به يې ډيره ساده خو له معناگانو ډکه وه له رعب څخه به ډکه وه له تکلف او تفنن څخه به خالي وه خو مفهوم به يې سړي ته اصحاب کرام وريه يادول چې څومره ساده او بې تکلفه انسانان، څومره ژور او د خدای خوښ خلک وو. نو بناءً زه به دا خپله مدعیٰ چې ولس د چاسره دی؟ په دريو ساده خبرو او مثالونو کې، خو د ملا صاب مبارک فه طرز او د هغه په شان ساده مثالونو کې راخلاصه کړم.

که ستاسو په ياد وي ۳۸ کاله وړاندې د روس گوډاگيانو خلق او پرچم چې روسانو د افغانستان په مکاتبو کې د ملت پر شتمنی د ملت د غوښتنو خلاف په غير اسلامي او ديني فکر تربيه کړل او دې ته يې وهڅول چې په داود خان کودتا وکړي او په ځای يې غير اسلامی او خلقی ديموکراتيک نظام منځ ته راوړي. هغه ؤ چې په کال ۱۳۵۷ هـ ش کې ترکي کودتا وکړه او د داود خان نظام يې چپه کړ، زما اوله خبره دلته پيليږي. د ترکي د کودتا په اوله ورځ ۶۰ کلن انسان خپل ټول ۶۰ کاله ژوند ډير هوسا او د راحت په خوب ويده حالت کې تير کړی و، او دومره خالي ذهنه و چې د حکومت په ضد د بغاوت له فکر سره بيخي نه و اشنا. د جهاد، هجرت، شهادت، بنديتوب، زخميتوب، انقلابي فکر او په انقلاب کې د بلا کړاوونو له زغملو سره ناشنا او په ذهني لحاظ له دې شيانو سره فه هيڅ قيمت نه وو جوړ خو د جمات او خړې حجرې ملا او طالب دغه ټولو شيانو ته داسې اماده کړ چې دا ټول يې په ډيره سړه سينه ومنل او هرڅه يې وزغمل، د خپل کلي د جمات او حجرې د طالب او ملا په فتوی سره يې يونيم ميلون شهيدان ورکړل د هجرتونو، بنديخانو او بلا ډيرو کړاوونو متحمل شول او هيڅ قسم قرباني يې دريغ نکړه.

د انقلاب له پیل بیا تر ګټلو دغه ولس د خپل علمي قشر سره اوږه په اوږه ودرید، که څه هم ځینو خلکو او ځینو نهضتونو د داودخان د نظام په ضد همدغه ملت قیام ته راوبلل خو چا یی په خوله پیاز هم پوچ نکړ اوس دلته مونږ په زغرده ویلی شو چې ولس د چاسره دی؟ د چا په فتوی سره یې د روس او د هغوی له ګوډاګیانو سره د جهاد او قربانۍ ډګر ته راودانګل؟ حقیقت تر لمر څرګند او رسوا دی.

کله چې مجاهدین کامیاب شول کفارو د خپل عادت سره سم پرینښودل چې په اسلامي نظام باندې متحد شي د خپلو کړیو او زرخرید غلامانو په وسیله یې د اختلاف په ناورین اخته کړل د شر او فساد دور شروع شو. دلته زه خپله دویمه خبره شروع کوم.

د هیواد علمي قشر ـ او د دوی تر قوماندې لاندې ولس د یو بل بدلون او د دې حالت څخه د نجات په فکر د انتظار په شیبو کې پاتې شول دغه حالت ټولو افغانانو ته معلوم دی تر دې پورې چې طالب مشر د اسلامي امت کوچیدلی امام د خلافت مجدد لوی ملاصاحب مبارک د نجات د پرشتي په شان د لوی خدای په فضل ملت له دغه ناورین څخه وژغورل ټولو خلکو دا صحنه په سترګو ولیده کله چې د طالبانو تحریک د ولس له منځه راووت، د ولس له زړونو را وټوکید، او د خپل ولس د نجات لپاره یې د شر او فساد سره د مقابلې په خاطر میدان ته را ودانګل، داسې به ښینه وه او د خدای په نامه قسم یادوم چې سیمې ته د طالب ځواک تر رسیدو مخکې مخکې به ولس د دوی استقبال ته راوتل او د دوی راتګ به یې د ځاني او مالي قربانیو په زغملو بدرګه کول، د ولس په تناره ښخه شوې ډوډۍ او پخې شوې غوښې به د طالبانو په اول خطونو کې خوړل کیدلې دغه حالت هرچا د سر په سترګو لیدلی او کتلی او هیڅوک ترې سترګې نشي پټولی. اوس په زغرده مونږ ویلای شو چې ولس د چاسره دی؟

ملاصاب مبارک نړۍ ته د اسلامي نظام نمونه پیش کړه، نړۍ ته یې د امن او سولې پیغام راووړ، د الهي نظام او الهي رحمت داعیه یې واوروله خو ټولی نړۍ د ملاصاب مبارک سره مقابله راواخسته او د زمکې په سر د ژوند په طریقه ورسره وران شول، د سولې او امن پیغام یې ونه منل، او اسلامي نظام یی ونه زغمل خو د ډبرین عزم لرونکی ملاصاب، د رسول کریم صلی الله علیه وسلم او د هغه د صحابه کرامو په منهج ولاړ ملاصاب مبارک د نړۍ په وړاندې د خپل خدای په خاطر چاته سر ټیټ نکړ او په ډبرین عزم او ابراهیمي توکل کې یې د یو ویښته په اندازه هم تغیر رانغی هغه و چې نړۍ خور ښامار یهودو نصاراوو د کلیسا په فرمایش د ټولې کفري نړۍ او تش په نام اسلامي غلامې نړۍ په اشر کولو سره په ډیر ظلم، جبر، دهشت او وحشت د دهشت ګردۍ د رمې شپون دجال بش د افغانستان پر حریم یرغل وکړ، ظلم، وحشت، او دهشت ګردي یې انتها ته ورسوله، ټول انساني حقوق یې تر پښو لاندې کړل اسلامي نظام یې ړنګ او پر ځای یې کفري غلامه اداره رامنځ ته کړه او افغانان یې د ظلم او وحشت په اور کباب کړل د افغانستان په مظلوم ولس یې داسې ظلمونه وکړل چې قلم یې له لیکلو ډډه کوي. که څه هم امریکایي دجالي اداري فقط طالب او القاعده د ځان لپاره د دښمن په صفت یاد کړل عام افغانان یې د ځان دوستان ونومول او دا حربه یې وړاندې کړه چې طالب د ولس څخه بیل او منزوي کړي ترڅو بیرته د مقابلې توان پیدا نکا د ولس ځینې بې ضمیره، افغانیت او اسلامیت فروش د ګوتو په شمار مرتدین یې د ډیموکراسۍ په ذلیل آخور ودرول، ټول تبلیغاتي جهت یې په دې بوخت و چې د دوی مقابله فقط او فقط د طالب او القاعده سره ده او ولس زمونږ دوستان او د ډیموکراسي غوښتونکی او تش په نام سولې ته لیوال دی. خو دا ولس چې د طالب سره وو او د دوی په تبلیغاتو دوکه نشول. امریکایي اشغالګران چې اصلا د افغانیت او اسلامیت دښمنان وو د اسلام او افغان ضد اعمالو مرتکب شول، د طالب د له منځه وړلو پخاطر یې ولس په اور کباب کړ په خدای قسم خورم چې د افغانستان وضعیت داسې حد ته ورسید چې د یوې شپې د تیریدو لپاره نه و جوګه. اوس پوښتنه داده او زه خپلې دریمې خبرې ته رازم چې د دې ټولو ناخوالو با وجود هغه څه شی دی؟ او هغه کوم تړاو دی؟ چې دا ولس او طالب یی سره بیل نکړل، د کفارو هیڅ حربې او د کفارو له خوا د دومره دباو او ظم باوجود ولس دې ته نشو برابر چې د خپل ژوند د هوسایني په خاطر طالب ته ځواب ورکړي او لکه څنګه چې د طالبانو تحریک په ابتدا کې د ولس له منځه راوتلی وو او د ولس له زړونو راټوکیدلی و همداسې د ولس په منځ کې را روان دي او ولس د هرې قربانۍ په زغملو اوږه په اوږه ورسره ولاړ دی او د ولس په زړونو که لا خوږیږي او راټوکیږي او دغه بهیر د یوې ورځې څخه بلې ته تیزیږي او توندیږي او په یرغلګرو، دهشت ګرو او د هغوی په غلامانو یې د افغانستان پاکه زمکه طبخي کړې. اوس مونږ په زغرده ویلای شو چې ولس له چاسره دی؟ دا یو حقیقت دی ولس له طالب سره طالب له ولس سره دی دوی پخپلو کې د مخ او شا په شان نه بیلیدونکی حیثیت لري. حقیقت ورځ تربلې ظاهریږي او د تبلیغاتو ډنډورې رسوا کیږي او دغه ډرامې ډرامه چیان تور مخي، شرمنده کیږي او ذلیله کیږي. الحمد لله.

**عبید تنویر**

# د جان کيري په ګوتو جوړ رژیم به هم داستقلال جشن نمانځي!؟

**دزمري دمیاشتي (۲۸) نیټه**

دګران هیواد (افغانستان) په ځلانده تاریخ کې داتلولی، میړاني ، حریت اوپاکو قربانیو یو ستر یادګار دی ، چې نمانځنه، یادونه اودرناوی یې دهرهغه افغان لپاره چې دهمدغسې فکر او ارادي څښتن او پیرو وي خاص اهمیت او دافتخار مقام لري.

څکه ۹۷ کاله وړاندې دنړی هغه لویه طاغوتي امپراطوری چې په قلمرو کې یې لمر نه ډوبیده په همدې ورځ دافغانانو په ایماني څواک او جهادي متو ماته اووشړیده او افغانانو له پیرنګي ښکیلاک نه خپل استقلا ل ترلاسه او هغوئ یې خپل دیني او ملي عظمت ته سلامي وګرځول.

داسد ۲۸ ورځ له دې امله هم اتلو افغانانو ته زیات اهمیت لري ، چې په همدې ورځ دکابل عیدګاه تاریخی جومات کې دافغانستان مجاهدوعلماوو ، مشایخو او میړنیو اسلافوپاچا امان الله خان ته دخپلواکی خول اوویاړ ورپه سرکړ، دغازي لقب یې ورته ډالي کړ اوپه څغرده یې ورته وویل چې داهرڅه مونږ ددې لپاره درکوو ، چې دخپلواکی اعلان به کوي او په افغانستان کې به داسلامي شریعت له پلي کیدو څخه نه پر شاکیږي.

خو چې کله دامان الله خان سترګي وغوړیدي اودانګریزانو دیرغل اوګواښ شیبي پای ته ورسیدي ، نو بیا متاسفانه نوموړي دافغانستان داستقلال داصلي ګټونکو (علمای کرامو ، مشایخو اومتدینو قومي مشرانو) دملاتړ، مشورو او توصیو پرځای په غرب تکیه وکړه ،اروپا ته له شپږ میاشتیني سفر ورسته چې کله بیرته افغانستان ته راستون شو بیا نو هغه غازي اومجاهد امان الله خان نه وو پاتي ،داستقلال داعیه یې هیره کړي وه ، په فکر، عقیدي او عمل کې یې (دپرمختګ ، اصلاحاتو او نوښت) په نامه اسلام ضد تمایلاتو ځای او لار مونډلي وه اودیته تیار نه وو چې په افغانستان کې دي داسلامي شریعت وړانګي خپري او دافغانانو تنده دې دیوه اسلامي نظام په حاکمیت خړوبه شي.

هماغه وو ، چې دامان الله خان په وړاندې دافغان ولس دصبر اوزغم کاسه ډکه شوه ، دیني او مذهبي قشر یې په خلاف راووت، چې نتیجه یې دهغه دنظام سریع سقوط او له افغانستان څخه دنوموړي په جلا وطنی تمامه شوه

**دهیواد روان حالت او استقلال :**

مونږ په داسې حال کې له برتانوي ښکیلاک څخه دخپل استقلال ۹۷ کلیزه نمانځو چې لاهم زمونږ ولس او هیواد دهماغه انګریز او له انګریز څخه دتولید شوو اسلام او افغانیت ضد قوتونو اوهیوادونو (امریکا ، اوسنی برتانیا او ناټو ) ترمستقیم یرغل او اشغال روان دی او داپنځلسم کال دی چې دغه اشغالګر هیوادونه هم په خپله او هم دخپلو ګوډاګیانو په مرسته دمظلومو افغانانو له وژلو اوځورلو خوند اخلي او

دهغوی ددینـي او مـلي خودمختـاری او خپلـواکی ځپلـو او هضمولو ته یې متې بډ وهلي.

خو داشغال په دغه حالت کې چې شپه ورځ امریکـا، ناټو او لاسپوڅی رژیـم یـې افغانـان پـه خپلـو وینـو لمبـوي ، دافغانستان دځمکي او فضا اختیارات ټول له امریکا اوناټو سره دي ، دافغانستان په هره سیمه او برخه کې چې چیرته یې زړه وغواړي پوځي عملیات ترسره کوي ،دافغانانو په کورونو چاپې وروړي ،نیسي یې او زندانونو ته یې اچوي او په هغه سربیره چې کله وغواړي په کابل کې خپل اجیر رژیم نصب کړي ،نو دامریکا دبهرنیو چارو وزیـر (جان کیـري) رازي اوپـه خپلـه خوښـه او طرحـه لـه هغـو ځیـرو چـې پـه غلامـی او ګوډاګیتـوب کـې لـه نـورو مخته او زیاته انرژی لري یوه پلیده او مفسده اداره ورنه جوړوي یو ورته ولسشمر بل اجراییوي ریس انتخابوي.

اوس دجـــان کیـــري لـــه ګیـــډي راوتلـــی همدغـه ذلیلي او حلقـه بګوشـه ځیـري هـم شـعارونه ورکـوي چـې مـونږ حریـت او اسـتقلال لـرو او داستقلال جشن تجلیلوو؟

داستقلال دعوه ګیران هغه څوک کیدای شي ، چې لږ ترلږه په دغو پنځو برخو کې خپلواکي او حریت ولري چې هغه عبارت دي له فکري ،استقلال ، فرهنګي استقلال، سیاسي استقلال ، پـوځي استقلال او اقتصادي استقلال څخه!!

مونږ دجان کیري اداري ولسمشر ، اجرایه ریس او مبلغینو ته یې وایـو چې ایا تـاسي پـه دغـو پنځو ټکو کې کوم ډول استقلال او خپلواکي لري ،کـه لـه پنځو ځخه په یوه کې هم ازادي او خپلواکي لـری نـو بیا داسـد د۲۸ نیټي دلمانځلو حق لری او که چیري یو هم نلري او هرڅه مو دجان کیری رحم کرم ته اړ او هغه پـوري تـړاو لـري ،نـو بیا پـه کـوم منطق او استدلال دافغانـانو ددغـې عظیمـي ورځـي دنمـانځلو او جشـن جرائـت کـوی او دخلکـو پـه سـترګو کې خاوري ورشیندی ؟

# ورزش نکردن
## چه تاثیری بر مغز می‌گذارد؟

طبق نتایج یک مطالعه جدیـد، توقـف ۱۰ روزه فعالیت‌هـای ورزشی می‌تواند به طور قابل توجهی جریان خون را در بخش‌های مختلف مغز از جمله هیپوکامپ کاهش دهد.

جی کارسون اسمیت، سرپرسـت نویسـندگان ایـن مطالعـه و استادیار دانشکده بهداشت عمومی دانشگاه مریلند در ایالات متحده می‌گوید: می‌دانیم که هیپوکامپ نقش مهمی در یادگیری و حافظـه دارد و یکی از اولین مناطقی است که در بـیماران آلزایمـری دچـار اضمحلال می‌شود.

در حال حاضر بر همگـان ثابـت شـده نتیجـه توقـف ورزش می‌تواند در ابتلا به بیماری‌های قلبی و عروقـی مـوثر باشـد، امـا محققان به دنبال تاثیرات آن بر روی مغز هستند.

محققان جریان خون مغز گروهی از افـراد سـالم ۵۰ تـا ۸۰ ساله را بررسی کردنـد و سـپس از آنهـا خواسـتند تمـام تمرینـات ورزشی خود را به مدت ۱۰ روز ترک کنند.

آنها با استفاده از تکنیک تصویر برداری مغزی MRI دریافتند توقف تمرین‌های روزمره باعـث کـاهش چشـمگیر جریـان خـون بخش‌های متعددی از مغز از جمله هیپوکامپ می‌شود.

# د انس حقاني سیاسي محاکمه او تر شا يې پراته وجوهات

(ثاقب)
سیاسي شنونکی او لیکوال

د تیرې دوشنبې په ورځ د کابل ابتدائیه محکمې انس حقاني په اعدام محکوم کړ.

انس (حقاني) څه کم دوه کاله وړاندې په بحرین هیواد کې د امریکایي استخباراتو لخوا اسیر او بیا په کابل کې ملي امنیت ته وسپارل شو.

نوموړی د خپل یوه بل ملګري حافظ رشید په ملتیا په قطر هیواد کې د هغو بندیانو لیدو ته ورغلی و کوم چې د امریکایي بندي افسر-بوبرګدال په تبادله کې له ګوانتنامو زندان څخه راخلاص او بیا په یاد هیواد کې تر نظارت لاندې ونیول شول.

د امریکایانو لخوا د انس تر ګرفتاري او کابل ته د هغه تر سپارلو څو ورځې وروسته ملي امنیت اعلان وکړ چې د دوی ځواکونو انس حقاني او د حافظ رشید په نوم یوبل تن قومندان د افغانستان په خوست ولایت کې نیولي.

خو طالبانو د ملي امنیت دغه خبر تکذیب او د یوې رسمي اعلامیې په ترڅ کې يې په بحرین کې د امریکایانو لخوا د انس حقاني د توقیف ټول جزئیات په تفصیل سره نشر کړل.

## د امریکایانو لخوا له قطر هیواد سره د کړې ژمنې نقض

د ۲۰۱۳ کال د جون په ۱۸ د قطر حکومت په منځګړیتوب د طالبانو او امریکایانو ترمنځ د بندیانو لومړنۍ رسمي تبادله ترسره شوه.

په دې تبادله کې امریکایي افسربوبرګدال چې په ۲۰۰۹ کال کې د پکتیکا په ولایت کې طالبانو نیولی و په ګوانتنامو کې د ۵ تنو مسؤلو طالب بندیانو په عوض کې تبادله شو.

د یادې تبادلې په هوکړه لیک کې امریکایانو له قطري چار واکو سره رسمي ژمنه کړې وه چې د بوبرګدال په مقابل کې تبادله شوی طالب چارواکي به تر یوه کال پورې د قطري مقاماتو تر نظارت لاندې وي او د هغوی خپلوان به کولای شي په پوره آزادي سره له تبادله شویو بندیانو سره لیده کاته وکړي.

د هغه هوکړه لیک په اساس چې د (مطلوب شرطونه، قیودات او اطمینان ) ترعنوان لاندې د امریکا او قطر حکومت ترمنځ د بندیانو د تبادلې په غرض شوې په لسمه ماده کې داسې راغلي:

د قطردولت کولی شي د بندیانو د کورنیو غړیو ته په قطر کې د استوګنې اجازه ورکړي.آزاد شوي بندیان به د خپلې کورنۍ د هرغړي په باره کې مخکې له مخکې د قطرله دولت سره مشوره کوي او د قطردولت به هغوي ته د اوسیدلو قانوني سندونه ورکوي.

د همدې هوکړه لیک په اساس د آزاد شویو بندیانو د کورنیو غړې، نه یوازې د بندیانو سره کتلی شي؛ بلکې په قطر کي د هستوګنې حق لري.

د یاد هوکړه لیک د مندرجو موادو په عملي کولو کې امریکا او د قطر حکومتونه دواړه مساوي مسؤلیت لري.

انس حقاني او حافظ رشید چې د ۵ تنو تبادله شویو بندیانو له جملې څخه د مولوي محمد نبي عمري له خپلوانو څخه و او د هغه د لیدو لپاره قطر ته د قطر حکومت په موافقه ورغلي وو له ښاغلي عمري سره تر ملاقات وروسته د بیرته راګرځیدو په مهال امریکایانو د خپلو کړیو تعهداتو خلاف ونیول.

که څه هم چې د طالبانو په رسمي اعلامیه کې د انس حقاني د توقیف ځای د بحرین هیواد ښودل شوی، خو د یو شمیر ناتائید شویو رپوټو په اساس هغوی له قطر نه د برګشت په مهال خپله د قطر په هوایي ډګر کې ونیول شول خو د دې لپاره چې قطرهیواد په یاده موضوع کې ملزم یا ناکام ښکاره نشي د رسنیو لخوا د هغوی د اسارت ځای بحرین اعلان شو.

انس حقاني د مشهور جهادي مشر مولوي جلال الدین حقاني د کشر زوی او د مدرسې د یوه عادي زده کوونکي په توګه په خپلې کورنۍ پواځینی شخص دی چې په سیاسي او پوځي فعالیتونو کې د نه ګډون له وجې نه امریکایانو ته مطلوب او نه یې هم د ده په سر ډالري جائزې ټاکلې وې.

نوموړی چې امریکایانو نیولی یواځېنی جرم یې دا دی چې د مولوي جلال الدین (حقاني) زوي او د سراج الدین (حقاني) ورور دی.



په قضایي لحاظ د هر ډول جرمي مجازاتو د تعمیل او تنفذ لپاره یواځي شخصي-عمل معتبر دی نه د خپلو خپلوانو کړني او فعالیتونه.

## د انس حقاني د محاکمې قضایي ارزونه

د انس حقاني شخصي وضعیت ته په کتو سره نوموړی له حقوقي او قانوني لحاظه په تمامه معنی بریٔ الذمه شخص دی؛ ځکه په نوموړي باندې نه امریکایان داسې اسناد لري چې د هغه د توقیف لامل وګرځي او نه هم د افغانستان حکومت.

دا چې د یوچا توقیف غیر قانوني وي نو پر هغه به د اعدام حکم څومره موجه وي؟

له همدې امله د افغانستان د قضایي قوانینو په رڼا کې پر ښاغلی انس حقاني باندې د اعدام حکم له سیاسي تحمیل پرته بل هیڅ قانوني او قضایي توجیه نه لري.

ځکه د افغانستان اوټولو نړیوالو قضایي قوانینو له مخې د اعدام لپاره شخصي-جرم مدارد اعتبار دی، نه د ورور، پلار او یانورو خپلوانو کړنې او جرمونه.

لهذا ويلای شو چې پر انس حقاني د ابتدايي محکمې لخوا د اعدام حکم يواځې د امريکايانو د فشار او ځينو نورو سياسي ملحوظاتو له امله تر سره کيږي، نه د افغانستان د نافذه عــدلي او قضــايي قوانينو په اساس.

کـه واقعـا هـم د بشري حقونو د ساتنې ســـازمان او يــــا د افغانســـتان د بشرـــي حقونـــو خپلـــواک کميسيون په ريښتيا د بشري حقونو مدافعين وي نو هغوی بايد له امريکايانو څخه د انس حقاني د توقيف او د ده په ناقانونه توقيف سره د قطر له هيواد سره د کړې توافقنامې د نقضولو پوښتنه وکړي.



## مصلحتي حکومت او سياسي حکمونه

دا چې خپله د افغانستان اوسنی اداره د هيواد د اساسي قـانون خـلاف يـواځې د امريکـايي توافـق نـامې پـه اسـاس رامنځته شوې نو د همدې ادارې د قضايي او عدلي چارواکو ډيـری پريکـړې هـم د اسـاسي قـانون خـلاف يـواځې د امريکايي مصالحو د تحقق په غرض تر سره کيږي.

همدي قضايي چارواکو يوځل وړاندې هم د روان کال د می په مياشـت کـې د څرخـي پلـه ٦ تنـه سياسي بنـديان د همداسې يوې سياسي او مصلحتي محکمې د حکم له مخې اعدام کړل ، خو کله چې د بشري حقونو د ساتنې سـازمان او د نورو حقوقي سازمانونو لخوا تر قانوني نيوکولانـدې ونيـول شول نو ارگ د قضايي چـارواکو پـه د فـاع کـې يـوه رسمي اعلاميه خپره کړه او په هغې کې يې په مکرر او تاکيدي ډول يادونـه کـړې وه چـې يـاد کسـان پـه اصـطلاح د تروريسـتي بريـدونو د قربانيـانو د وارثينـو د پرلپسي-غوښـتنو پـه اسـاس اعدام شول، خو هغه مهال د استاد برهان الدين زوی ښاغلی صلاح الدين رباني د ولسمشر د دغې اعلاميې پـه تکـذيبولو سره پرخپلې فـيس بـوک پـاڼې وليکـل چـې د خپـل پـلار د ادعائي قاتل حميد الله د اعـدام پـه اړه نه شخصا دی ، نـه يــي کــورنۍ او نــه هــم د جمعيــت اسـلامي گونـد پـه جريان کـې اچـول شوی او نه يې هـم د يـاد شـخص پـر اعدام موافقه لرله.

## نتيجه:

د سياسي شـنونکو پـه بـاور پـرانس حقـاني د اعـدام د حکم تر شا د امريکايانو په شمول په حکومت کې د يوشمير متنفذه کړيو لاس دی، چې غواړي په دې کار سره له حقاني شبکې څخه پرغچ اخيستنې سر بيره په افغانستان کې نورهم د جگړې شدت زيات کړي ، ځکه تير ځل هم طالبانو د خپلو ٦ تنه سياسي بنـديانو د اعـدامولو پـه مقابـل کـې پـه قضـايي محاکمو او څارنواليو باندې مرگوني بريدونـه وکـړل چـې پـه ترڅ کې يې په لسگونه کسانو ته مرگ ژوبله واوښتله.

اوس چې هسي هم د هيواد په ختيځ، لويـديځ، جنـوب او شمال کې د جگړې لمبې بلې دې که خدای مکړه په انس حقاني باندې مرافعه او تميز هـم د بتدائيـه محکمـې همـدا د سياسي اعدام حکم تائيد کړي نو په دې سره به د جگړې پـه بـل شـوي اور بانـدې نـورهم د تيزولـو تيـل وشـيندل شي او دجگړې په دواړو اړخونو کې به د افغانانو زياتې وينې وبهول شي.



# د شهید مولوي محمـــد ولي صاحب ژوند ته کتنه

# لیکنه: عبدالرؤف حکمت

د هـر اسـلامي نظـام یـوه لـه اساسي وظائفو څخـه دا ده چـې دالله تعالی مخلوق خیر ته رهبري او له شر څخه یې راوګرځوي.له همدې امله خـو الله تعالی د مسلمانانو پـه مـنځ کـې د یوې داسې ډلې وجـود ضروري بللـی دی چې د امر بـالمعروف و نهـی عـن المنکر مبارکه وظیفه ترسره کړي.

الله تعالی فرمایي: ولـتکن مـنکم امـة یـدعون الـی الخیـر و یـأمرون بالمعروف و ینهون عن المنکر و اولئـک هم المفلحون. ۱۰۴ آل عمران

او وي دي ستاســو څخــه یــوه داسې ډلې چې خیر ته دعوت کـوي او په نیکیو امر کوي او له بدیو نــه منـع کوي او همدا خلک بریالي دي.

د همدې قرآني امر په اســاس لــه کومې نیتې څخه چې د ملا محمد عمـر مجاهد رحمه الله په مشرۍ د اسـلامي مارت قیام پیل شو لــه لومړیـو شـیبو څخه یې د سیار ګـروپ پـه نـوم ډلـه درلوده چې خلک یې له منکراتـو منـع کول،په نیکیو یې ورته امـر کـاوو او د دیني احکامو داحیاء هڅه یې کوله.

د اسـلامي امـارت پــه هماغـو لومړنیو شیبو کې د کندهار لـه فتحـې

څه موده وروسته د ۱۳۷۴ هــ ش کال د حمل په ۲۸ نیټه د اسلامي امارت د مشر ملا محمد عمر مجاهد په ځانګړي فرمان د سیار ګروپ د ادارې په ځای د امربالمعروف و نهی عن المنکر په نوم ځانګړې اداره رامنځته شوه او د کندهار یو تـن پرهیزګـار، بااسـتعداده او د ښـو صـلاحیتونو خاوند عالم او مجاهد مولوي محمد ولي صاحب یې د مشر په حیث وټاکل شو.مولوي محمد ولي صاحب په دې ډول د اسلامي امارت په تشکیلاتو کې د امربالمعروف ونهی عـن المنکـر د مهمـې وظیفې مسؤلیت په غاړه واخیست تردې چې د کابل له فتحې وروسته په همـدې نامـه د نـوي رامنځته شوي وزارت وزیر وټاکل شو او د امریکایي یرغل تر وخته یې پـه همـدې بخـش کـې خدمت ته ادامه ورکړه. دلته په دې لیکنه کې د نوموړي په ژوند او کردار رڼا اچوو هیله ده چـې د متدین ژوند له کارنامو څخه به یې مستفید شئ.

## د ژوند لومړني مراحل

مولوي محمد ولي حنیفي د ملا محمد عـوض زوی او د مـلا عبدالواحـد لمسـی پـه قـوم پښتون/علیزی په ۱۳۴۶ هــ ش کال کې د کندهار ولایت په سیاچوی سیمه کې زیږیـدلی دی. د یادونې وړ ده چې سیاچوی سیمه هغه مهال د پنجوایي ولسوالۍ مربوط ساحه وه مګر د نویـو اداري تقسیماتو له مخې د ژړۍ ولسوالۍ مربوط بلل کیږي.د مولوي محمد ولي صاحب کورنۍ له پخوا څخه د علم او دیانت درلودونکې کورنۍ وه، پلار او ورونو یې دیني علم برخه درلـوده له همدې امله له کوچنیوالي نوموړي ددیني علم په حاصلولو پیل وکړ.

## د تعلم سلسله

د مولوي محمد ولي صاحب پلار له علم سره خورا زیات شوق درلود له خپلو اولادونو سره یې د علم په حصول کې ډیر زیات کوښښ کاوو او له هر کار څخه یې علم ته فـارغ کـړي ول.د مولوي محمد ولي صاحب یو ورور وایي چې پلار مو راته ویلي و: که زما په بدن اور بل و هـم ، تاسو به ځان له سبقه نه باسئ او نه به په بل کار مشغولیږئ.مولوي محمد ولي صاحب چـې د خپلو ورونو په منځ کې یې ځانګړې لیاقت او استعداد درلود د پلار یې وربانديې ځانګړی نظر و او کوښښ یې کاوو چې ښه عالم شي.

د مولوي محمد ولي صاحب مشر ورور قاري عبدالباري صاحب د پاکسـتان پـه مشـهوره مدرسه دارالعلوم حقانیه کې په تعلم بوخت و، د ثور له انقلاب وروسته پـه ۱۳۵۸ هــ ش کـال

کې نوموړي خپل کشر ورور محمد ولي چې دغه مهال ۱۲ کلن و هم له ځان سره بوت او هلته یې په دې پېژندل شوي علمي مرکز کې ددیني علومو حصول ته دوام ورکړ.

مولوي محمد ولي صاحب په دارالعلوم حقانیه کې دوه کاله تیر کړل له هغه وروسته بلوچستان ته راغی او دلته یې په بیلابیلو مدارسو کې لکه د کویټې د شالدرې مدرسه، په کراس سیمه کې دارالعلوم العربیه، دغه راز د هغه وخت د مشهورو استادانو لکه شیخ نور محمد صاحب، شیخ عبدالحکیم صاحب او شیخ حبیب الله صاحب د تلمذ ویاړ یې ترلاسه او ددینی علومو له سعادت څخه برخمن شو.

مولوي عبدالغنی صاحب چې د طالبۍ په همدې دوران کې ډیر وخت له مولوي محمد ولي صاحب سره نږدې پاته شوی وایي: مولوي محمد ولي صاحب په ټوله معنی یو مخلص،متدین او د علم شوق لرونکی طالب و، په ښه استعداد سربیره یې پوره تقوا هم درلوده تردې چې د شریعت هیڅ مخالف کار یې نه شوای زغملی. د جهاد په وخت کې ما او مولوي محمد ولي صاحب د یوه تنظیم په مدرسه کې زده کړې کولې، یو وختددې تنظیم مشران د هیئتي په شکل په مدارسو گرځیدل، چې زموږ مدرسې ته هم را روان و، د هیئت

مقصد دا و چې مدرسې د لیلیه شاگردانو واقعي شمیر معلوم کړي ترڅو له هغه سره برابره اعاشه ورکړي.زموږ په مدرسه کې لیلیه شاگردان لږ و اما د مدرسې اراکینو ددې لپاره چې ډیره اعاشه ترلاسه کړي له شاوخوا مساجدو یې ډیر طالبان راوبلل ترڅو یې هیئت ته د مدرسې د لیلیه طالبانو په حیث وښیي. کله چې هیئت مدرسې ته راغی او مولوي محمد ولي صاحب د مدرسې د یوه طالب په حیث ورسره مخامخ شو، نو وضاحت یې ورته وکړ چې دا طالبان ټول د همدې مدرسې نه دی بلکې له بهره راوستل شوي دي، بیا مولوي محمد ولي صاحب له هیئت سره په ټولو اطاقو وگرځید او هر طالب یې ورته معرفي کړ چې د مدرسې دی او یا هسې په جعل راوستل شوی دی. د نوموړي دا کار که څه هم د مدرسې د اراکینو د غوسې او خپگان سبب شو مگر ځکه یې ترسره کړ چې د هغه طبیعت داسې جوړ و چې هیڅ غیرشرعی کار یې نه شوی زغملی ، ځکه غدر یو له غیر شرعي کارونو او د نفاق له علاماتو څخه دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یي په اړه فرمایي: وعن أَبي سعيدٍ الخدريِّ رضي الله عنه أَنَّ النبي صلى الله عليه وسلم قَالَ: لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ عِنْدَ أَسْتِهِ يومَ القِيامَةِ؛ يُرْفَعُ لَهُ بِقَدَرِ غَدْرِهِ. رواه مسلم . رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي د هر غدر کوونکي په کوناټو کې به د قیامت په ورځ د غدر بیرغ ولاړ وي چې دده د غدر په اندازه به لوړ رپیږي.

مولوي محمد ولي صاحب هغه مهال چې نور دکمونیستانو په خلاف جهاد د بریا منزل ته نږدې شوی و یو ځل بیا دارالعلوم حقانیه ته لاړ هلته یې ددوو کلونو په ترځ کې وړه او لویه دوره وکړه او د وخت له ستر فقیه او عالم شیخ الحدیث مولانا مفتي محمد فرید رحمه الله څخه یې د نبوي احادیثو اجازت ترلاسه کړ.

## جهادي ژوند

د شوروي یرغلگرو په خلاف جهاد په مهال مولوي محمد ولي صاحب نوی ځوان و،چې د کال زیاتره وخت به یې په دیني مدارسو کې دیني علوم لوستل اما د رخصتیو په وخت کې به کندهار ته تلو او هلته به یې د شوروي یرغلگرو خلاف په مسلح جهاد کې برخه اخیستله.

دنوموړي مشر ورور قاري عبدالباري صاحب وایي چې مولوي محمد ولي صاحب د شوروي ضد جهاد په مهال ټول وخت د کندهار ولایت د ویاړلي مجاهد شهید لالا ملنگ په جبهه کې جهادي خدمت ترسره کړ، دغه جبهه چې د ارغنداب، ژړی،پنجوایي او د کندهار د ښار په شاوخوا کې یي جهادي عملیات ترسره کول په کندهار کې یوه له هغو جبهو څخه وه چې د شوروي یرغلگرو خلاف جهاد کې یي کلیدي ونډه درلوده او ستر افتخارات یې گټلي دي.

د کمونیستي واکمنۍ په وروستي کال شهید مولوي محمد ولي صاحب زابل ولایت ته هم د جهاد لپاره لاړ چې هلته یې د جبار ملیشو تر نامه لاندې د کمونیستانو له ځواکونو سره په سختوجگړو کې برخه واخیسته او په دې جگړه کې ټپي هم شو.

د جهاد له بريا وروسته مولوي محمد ولي صاحب په پنجوايي ولسوالۍ کې د ديني علومو تدريس ته ملاوتړله چې د طالبانو د اسلامي تحريک د ظهور تر وخته د تدريس په سپيڅلې وظيفه بوخت و.

## په اسلامي امارت کې شموليت او خدمتونه

د نوموړي وراره حافظ محمد صاحب وايي،د تحريک د لومړني پيل په شپو کې يو وخت چې موږ د شهيد مولوي محمد ولي صاحب سره په مدرسه کې سبقونه ويل يو ورځ ډېرې او د مرميو اوازونه مواوريدل خلکو ويل چې طالبانو په يوه ټوپکي قومندان صالح باندې جنګ شروع کړی دی،مولوي محمد ولی صاحب په هماغه ورځ خپل تدريس ته د پای ټکی کېښود خپل طالبان يې ورسره روان کړل او په دغه جنګ کې يې شرکت وکړ، دا د طالبانو د تحريک لومړنی جنګ و او مولوي محمد ولي صاحب له همدې ځايه د تحريک ملګری شو.

د کندهار له فتحې څه موده وروسته د اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله په فرمان د امر بالمعروف ځانګړې اداره جوړه شوه او مولوي محمد ولي صاحب يې د مشر په حيث وټاکل شو.نوموړي په دې اداره کې ور سپارل شوی خدمت په ډېر اخلاص او احسنه طريقه سره انجام کړ. د اسلامي امارت هغه لويه کارنامه چې وروسته له کلونو د ځمکې پر مخ د الهي نظام تنفيذ و تر ډېره د همدې ادارې په توسط عملي کيدو. کله چې اسلامي امارت لخوا کابل فتحه شو، د افغانستان په تاريخ کې په لومړي ځل د امر بالمعروف و نهی عن المنکر په نوم ځانګړی وزارت رامنځ ته شو.

دغه وزارت چې په ټولو ولاياتو کې يې اړوند رياستونه درلودل له مهمو کارونو څخه يې د دينی شعائرو احياء، په لمونځ، روژه، زکات او ټولو حسنه اعمالود خلکو مأمورول، د ناروا کارونو، بدعتونو او غيرشرعي دودونو له منځه وړل،د ساز سرود، فحشاء او بې دينۍ د اسبابو ختمول، د شرعي حجاب او ستر رعايت ته د ښځو متوجه کول، د مسلمانانو سيرت او صورت په شرعي طريقه باندې برابرول،د نشه يي توکو، شرابو او نورو مخدراتو د استعمال مخنيوی او دغسې نور شرعي وظائف يې له مهمو فعاليتونو څخه و.

مولوي محمد ولي صاحب د ددې وزارت د وزير په حيث په خپل کار کې خورا جدي او پوره توجه يې ورته درلوده تر دې چې يو وخت يې کوم کس د څه نامشروع کار له امله بندي کړی و، خو دده په ناخبرۍ کې د نوموړي مشر ورور پرته له اجازې له توقيف څخه خوشې کړی و، خو چې کله مولوي محمد ولي صاحب خبر شو نو د خپل ورور د بندي کولو امر يې وکړ چې هغه د حبس له ويرې له ښاره وتښتېد.

## د امريکا په خلاف جهاد او شهادت

د امريکايي يرغل نه وروسته او کله چې د اسلامي امارت ځواکونه د هيواد له لويو ښارونو ووتل مولوي محمد ولي صاحب يو ځل بيا پاکستان ته مهاجر شو.له څه موده مخفي ژوند نه وروسته يې يو ځل بيا د جهادي چارو په سمبالولو پيل وکړ تر دې چې د جهاد عملي ډګر ته مخه کړه.

حافظ محمد صاحب و ايي د مولوي صاحب له جهاد سره فوق العاده مينه وه، په ۲۰۰۶ ميلادي کال کې کله چې لومړی ځل د جهاد سنګر ته تلو نو دومره خوشاله و او داسې شوق يې درلود چې له ډېره شوقه يې وويل چې د بيت الله شريف حج ته مې هم والله که داسې زړه کيږدي لکه د پاشمول ( په کندهار کې يوه جهادي سيمه ده ) جهادي سنګر ته . مولوي محمد ولي صاحب جهادي خدمتونه پيل کړچې په دې لاره کې يې شهادت يو له سترو ارمانونو څخه و.

له شهادت نه څه موده وړاندې نوموړی د ژړۍ ولسوالۍ په سياچوی سيمه کې د خپلو ورېرونو کور ته ورغلی و، هغوی ورته ويلي و چې دلته حالات خراب دي امريکايان حملې کوي، نو زموږ مشوره داده چې لاړ شه خپل کور ته. خو مولوي صاحب په ځواب کې ورته وويل زه د جهاد او شهادت لپاره راغلی يم او زړه مې غواړي چې د الله تعالی په لاره کې مې بدن ټکره ټکره شي.

عجيبه دا وه چې څو ورځې بعد الله تعالی د مولوي محمد ولي صاحب همدغه هيله ور پوره کړه، د ژړۍ ولسوالۍ د پاشمول سيمې د رازمحمد خان په کلي کې د مجاهدينو په مرکز

امریکایي الوتکو دروند بمبار وکړ چې په نتیجه کې یې د ۲۵ نورو مجاهدینو تر څنګ د ۱۴۲۷ هـ ق کال د ذوالقعدة الحرام د میاشـتې پـه ۲۴ مـه نیټـه د پنجشنبې په شپه مولـوي محمـد ولي صاحب په شهادت ورسید. انـا لله وانـا الیه راجعون

په دې بمبار کې د ډېرى شـهیدو مجاهدینو جسدونه روغ او سالم و اما د مولوي محمد ولي صاحب پـه جسـد باندې بم لګیدلی و نو ځکـه یـې بـدن ټـوک ټـوک شـوی و او پـه دې ډول د شهادت هیله یې پوره شوې وه.

## د نوموړي د شخصیت په اړه

شهید مولوي محمد ولي صـاحب د خپلو ملګرو تر منځ په ډېره تقـوا او دیانت شهرت درلود، د نوموړي ملګری مولوي حمد الله مطیع صـاحب وایــي : مولوي محمد ولي صاحب یو پرهیزګار او مخلص سـړی و، د فقـر ژونـد یـې درلود، د جهاد او اسلامي نظام په لاره کې یې ډېر مخلصانه خدمتونه سر تـه ورسول او په همدې لاره کې د شهادت مقام ته ورسید.

**د نومـــوړي ورور قــــاري عبـدالباري صـاحب وایـي:** مولـوي صاحب له کوچنیوالي او ځوانۍ څخـه د تقوی او دیانـت نمونـه و، حتـی پـه ځوانی کې یـې مـا عـیش پرسـتي،بې ځایه خندا، ټـوکې او د وخـت ضـایعه کول تـرې نـه دي لیـدلي، تقـوی یـې طبعي وه، ډېر زیات اذکار به یې کـول او د تصوف د نقشبندیه طریقې مرید و،د وزارت په وخت کې چې د امـارت لخـوا کـوم معـاش ورکول کیده هغه ټول یې په کور کې نه مصرفاوو بلکې نـیم یـې واپـس کـاوو او د کـور نـیم مصارف یې له شخصي عائد څخه پوره کول. ده به ویل چې ما ټول وخت د امارت کار ته نه دی ورکړی، بلکې نیم وخت په کور کې یم نوځکه باید ټول مصارف هم د امارت له معاش څخه ونـه کړم.

**حافظ محمد صاحب وایي:** مولوي صاحب د فقر او غربت ژوند درلود، سره له دې چـې وزیر و مګر په ژوند کې یې د اسایش په لحاظ کوم تغیر ونه لیدل شو، یو وخت یې ویل چې لـه وزارت وړاندې مې راسره سرمایه ۱۳زره کلدارې وې مګر کله چې امارت سقوط وکړ او هجـرت مې کاوو نو ۷ زره کلدارې شخصي بودیجه مې درلوده او په دې یې شکر کاوو چې د بیت المـال له پیسو څخه یې شخصي پانګه نه ده زیاته کړې.

**قاري عبدالباري صاحب وایي:** مولوي صاحب زما ورور او تـر مـا کشرـ و ، داسـلامي امارت په مهال ما د خوست په ولایت کې وظیفه درلوده کله به چې کنـدهار تـه خپـل کـور تـه راغلم،نو دلته به د رخصتۍ په مهال په ښکار پسې تلم، یو وخت مولوي محمد ولي صاحب راتـه وویل چې که په ښکار پسې ځې نو د امارت د موټر تیل به نه مصرفوې او که موټر خـراب شـو هم په خپله به یې جوړوې ځکه دا تاته د رسمی وظائفو لپاره درکړل شوی دی نه د ښکار لپاره. له دې څخه معلومیږي چې مولوي محمد ولي صاحب د بیت المال د مصرف په برخه کـې خـورا ډېر محتاط و او په دې برخه کې یې هیڅ خپلوي نه پالـله او نه یې د چا لحاظ کاوو.

د نوموړي نږدې ملګري وایي: یو وخت په کابل کې یو عادي موټر چلوونکي مولوي محمد ولي صاحب په موټر وواهه، کله چې دغه موټر چلوونکی خبر شو چې د طالبانود حکومت وزیر یې په موټر وهلی دی نو ډېر وارخطا شواو د امنیتي چارواکو لخوا توقیف شو. مګـر کلـه چـې مولوي صاحب روغتون ته یووړل شو او را په حال شو تر هرڅه مخکې یې دا وویـل چـې هغـه ډریور مو که بندي کړی وي آزاد یې کړئ زما لخوا ورته عفو ده او ښښلی مې دی.

دا خبره ځکه ډېره تأمـل وړ ده چـې لـه طالبـانو وروسـته د کـرزي او اشرف غنـي پـه حکومتونو کې روزانه د لوړپوړو چارواکو لخوا عادي موټر چلوونکي، ترافیک یا پولیس لـه دې امله وهل کیږي، ټپیان کیږي او حتی وژل کیږي چې ولې یې دوزیر یا پارلمان د وکیل مـوټر تـه لاره نه دې ورکړې او په دې ډول کبر جن چارواکي په مظلومو او بې وسه کسانو خپل فرعونیت تجربه کوي.

خو د اسلامي واکمنانو مثال داسې وي لکه مولوي محمد ولي صاحب چې کـه بـل څـوک پرې ملامت هم شي ورته عفو کوي او حتی عادي دعوا وربانـدې نه کوي.

الله تعالی دې په شهید مولوي محمد ولي صاحب باندې ورحمیږي او دده برکـات دې ددې په ورثه وو باندې کیږدي آمین یا رب العلمین.

# د خوست ولایت له جهادي مسؤل

## محترم (مولوي احمد جان) سره د څرك مجلې مرکه

**څرک : محترم مولوي صاحب له هر څه وړاندې درته هر کلی وایو! که دمورچل مجلې لوستونکو او مینه والو ته خپل لنډ تعارف وکړئ، نو محرباني به وي؟**

**ځواب :** الحمدالله الذی قرع ایمة الکفر بجماعة المجاهدین والصلوة والسلام علی سیدنا امام المجاهدین الذی ادعی النبوة حین دهمت الدنیا مصایب الکفر السود الداهیة وعلی الله واصحابه الذین هم مفاتیح الرحمة ومصابیح الغد رضی الله عنهم ورضواعنه .

زما نوم محمد علي جان ،د پلار نوم مې احمد جان، د کابل ولایت دموسهي ولسوالۍ، دحاجي بابا کلا اوسیدونکی یم.

**څرک :محترم مولوي صاحب دا چې تاسې د مجاهدینو په صف کې دیو عالم په حیث پېژندل شوي یاست که دخپلې تعلیمي سلسلې لنډ وضاحت راته وکړئ ؟**

ځواب : الحمدالله زمونږ کورنی له علم او له علماؤو سره ډېره مینه لري، نو په همدې وجه په اول قدم کې خپل والد صاحب دکلي ملاامام ته دزده کړې لپاره لېږلم؛ وروسته مې د علاقې دنامتو قوماندان شهید حاجي عبدالغني اکا په مدرسه کې څه اندازه زده کړې وکړې، د مروجه دیني علومو د حاصلولو لپاره مې د پاکستان په مختلفو مدرسو کې لکه: په ضلع هنگو ، پشاور باغوانانواو مهاجر بازار په مختلفو مدرسو کې درسونه د طالبی شپې تېر کړي دي.

همدارنگه په افغانستان کې د اسلامي امارت د حاکمیت په دوران کې د کابل ولایت دچمن حضوري په نظامیه او دخوست ولایت د منبع الجهاد په مدرسه کې مې سبقونه ویلي چې بالاخره د مبارکو احادیثو دلوستو او د دورې فضیلت مې دمحترم شیخ الحدیث الحاج مولانا عبدالستارجان کابلي مرحوم څخه په جامعه اسلامیه زرگري کېپه (۲۰۰۷م ک)کې حاصل کړ.

**څرک : محترم مولوي صاحب دا چې تاسې دنامتو قومندان شهیدملاعبدالمنان په ملگرتیا کې پاتې شوي یاست دده له شهادت وروسته دملگرو سرپرستي هم ستاسې په غاړه وه که ددې تر څنگ دخپلو جهادیچارو داغاز په اړه معلومات راکړئ؟**

ځواب : داسلامي امارتله سقوط وروسته په -۲۰۰۷م - کال کې مونږ څو محدود ملگري د تعلیمي سلسلې دپرمخ بېولو ترڅنگ به کله ناکله دجهادي مشورو لپاره سره کېناستو، چې باالاخره د خپلو ملگرو د (۱۳) کسیزې ډلې لپاره مو محترم شهید ملاعبدالمنان [تقبله الله]دمشر په توگه وټاکه؛ محترم شهید ملاعبدالمنان[تقبله الله] خپل ټول پروگرامونه د اسلامي امارت د اوسني مرستیال مشر۔ محترم الحاج خلیفه سراج الدین حقاني [حفظه الله ]له هدایاتو سره سم پرمخ وړل او له نوموړي څخه یې د خپلو ټولو ملگرو په نمایندگۍ د عملي کار د پیل کولو اجازه و غوښته؛ چې د خلیفه صاحب له خوا هم د کار د پیل امر وشو او د هغه په هدایت مو خپل مرکز په لواړه کې فعال کړ چې له همدې ځایه به مو د ملا

عبدالمنان [تقبله الله] په مشرۍ په مختلفو سيمو کښېل جهادي عمليات تر سره کول چې باالاخره محترم شهيد ملاعبدالمنان [تقبله الله] په (۲۰۰۷) م کال کې دشهادت لوړ مقام ته ورسېد.

دا چې زه د شهيد ملا عبدالمنان نږدې ملګری پاتې شوی يم نو د همدې ملګرتيا په وجه په ذهن کې مې د نوموړي په هکله کافي نيکې او په زړه پورې



کارنامېشته چې د ټولو ذکر اوس نامکنه دی خودومره وايم چېدښمنانو ته لوی درد سر او خنډ وو؛ ترديې چې ځينو ليکوالانو او نړيوالو مطبوعاتو يې له شهادت وروسته داسې راپورونه خپاره کړل چې دی جنګيالی،د جنګيالو مشر او د ملادادالله په کچه نه سترې کېدونکی قوماندان وو؛ مونږ ترې راضي يو الله جل جلاله دي ترې راضي شي ځکه چې په خپل وخت کې يې د ملګرو دښه مشرتوب حق ادا کړی وو.

**ځرک : محترم مولوي صاحب که د خوست ولايت په عمومي جهادي وضعيت راته لږ رڼا واچوئ، چې دمجاهدينو عمليات پکې تر کومه حده بريالي دي، او په عمري عملياتو کې مو کوم پرمختګونه درلودل؟**

ځواب : خوست د افغانستان په جنوب ختيځ کې پروت ولايت دی، چې مساحت يې (۴۵۲۹) کيلومتره دی، د نفوس شمېره يې تقريبا تر(۵۰۰۰۰) اوښتې دی، د مرکز په شمول (۱۳) اداريواحدونه او ولسوالۍ لري لکه : شيخ امير ، درګی، يعقوبی، صبرۍ ، باک ، تريذلی ، عليشير، ځاځي ميدان، موسی خيل، قلندر، منډوزی، نادرشاه کوټ، سپيره، دوه مند او مرکز.

په خوست ولايت کې بېلا بېل لوی او واړه قومونه ژوند کوي لکه : ځدران، منګل، صبري، بابکرخيل، ټني، ځاځي، وغيره.

خوست وال ډېر ديندارە او په خپلواکۍ مين خلک دي په جهادي بهير کې يې په بېلابېلو دورونو کې سترې او تاريخ سازه قربانۍ ورکړي دي او دهر يرغلګر په وړاندې يې د مقابلې بيرغ هسک ساتلی دی.

د کمونيست رژيم په وړاندې په تېر جهادي بهير کې خوست د هيواد په سطحه يو مهم سنګر حسابېده او همدارنګه په روان جهادي بهير کې د امريکايانو ديرغل له پيله تر دې دمه خوست ولايت د اسلامي امارت د مجاهدينو يو فعال سنګر دی.

امريکايانوخپل لومړنی وژل شوی عسکر د (چپ مير) په نوم امريکايي افسر-له همدې خوست څخه امريکا ته يوړ چې د مجاهدينو په بريد کې غلبيل غلبيل شوی وو.

الحمدالله په خوست کې له مانه مخکې هم جهادي کارونه ډېر پرمخ روان وو، چې دغلامې اداري له پلويان يې وارخطا کړی وو؛ خو اوس چې تقريباً يو کال کېږي ماته دا خدمت راسپارل شوی دی ، د غلامې اداري پر ضد د الله (جل جلاله)په نصرت او دمجاهدينود بې ساريو قربانيو په برکت تقريباً (۶۹۵) غټ او واړه عمليات ترسره شوي دي چې په دې عملياتو کې د دښمن لوی او واړه چارواکي وژل شوي دي.

خوست ولايت لکه څنګه چې دسابقه کمونستي انقلاب د دورې پر مهال دښمن ته هر اړخيز ارزښت درلود، همدا راز امريکايانو ته هم له نظامي پلوه خورا زيات ارزښت لرونکی دی.

د افغانستان د ځينو نورو ځايونو په تفاوت امريکايان په خوست کې په مختلفو نومونو نظامي تشکيلات لري چې هغه د هيواد په نورو ولايتونو کې نه تر سترګو کېږي ؛ د بېلګې په توګه : کمپاين، سپېشل

فورس، ضرباتي، چې د وحشت اوظلمونو کیسې به یې د علاقې خلک هیڅ کله هم نه هېروي.

چونکه خوست یرغلگروته له نظامي پلوه ډېر مهم وو نو ځکه خو یې د فوځي انخلاء دتسلسل پر مهال خوست تر اوسه په سابقه نظامي نقشه یعنې په زمیني او هوایي قواوو سمبال پرایښی دی.

د خوست ولایت مساحت د نورو ولایتونو په نسبت ډېر کم دی اود جنگ ساحې نلري، البته دلته زمونږ اکثره عملیات د غلچکي حملو او بمي چاودنو په ډول تر سره کېږي.

تاسې محترم دعزم د عملیاتو یادونه وکړه زه دومره ویلی شم چې دعزم عملیات ډېر گړندي اوبریالي وو چې دعمري عملیاتو په بهیر کې مونږ ( ۵۸۸ ) غټ او واړه مختلف النوعملیات درلودل .

**ځرک :محترم مولوي صاحب د اسلامي امارت مجاهدین دخوست ولایت په کومو برخواو ولسوالیوکې تسلط اوحاکمیت لري؟**

ځواب : الحمدالله په خوست ولایت کې د سپیرې –صبریو او د موسی خیلو ولسوالیو له مرکزونو پرته د دې ولسوالیو په ټولو علاقو باندې زمونږ دمجاهدینو تسلط او حاکمیت دی؛ د یادونې وړده چې دقلندر په ولسوالۍ باندې زمونږ دمجاهدینو په کامله معنی تسلط دی؛ او په پاتې نورو ولسوالیو کې هم په اکثرو سیمو کې حاکمیت لرو،لله الحمد چې تر ډېره حده مو داسلامی امارت لایحه او فرامین تطبیق کړي دي چې دا ټول دمتعال خدای په نصرت او دولس په مخلصلانه همکاری سره روان دي.

**ځرک : محترم مولوي صاحب په راتلونکي کې مو د نظامي عملیاتو لپاره کوم تیاری نیولي دي که په دې اړوند راته وضاحت وکړی؟**

ځواب : الحمدالله زمونږ مجاهدین ټول ډېر برجسته او غښتلي خلک او ځوانان دي د هر سیمې لپاره یې جلا جلا نظامي تکتیکونه غوره کړي دي چې تفصیلي جزیات یې د نظامي اصولو په پام کې نېولو سره دوخت نه مخکې بیانول مناسب نه بولم خو دومره ویلی شم چې مونږ په آینده کې دنظامي عملیاتو لپاره مختلف النوع تکتیکونه لرو چې انشاء الله نتایج به یې په راتلونکي کې ځرگند شي .

**ځرک : محترم مولوي صاحب له عامو خلکو سره دمجاهدینودتعامل په اړه که راته لږ معلومات را کړئ؛ او بله دا چې د ځوانانو د ذهني اوفکري روزنې په برخه کې مو کوم اقدامات کړي دي ؟**

ځواب : محترمه له عامو خلکو سره زمونږ دمجاهدینو تعامل او اړیکې ډېرې ښې دي ځکه چې وخت په وخت ورسره ناستې لرو تل مو له دوی سره د تفاهم او مشورې په صورت کې دهیواد دترقی او بهبود لپاره کوښښ کړی دی؛ خوست مېشت ولس الحمدالله په اسلام او هیواد مین خلک دي او مونږ له هرې ممکنه لارې د اصلاح کوښښ کړی دی؛ دمساجدو ملاامامانواو د ولسي مشرانو د همکاری له لارې مو د اصلاح عمل جاري ساتلی دی.

د اسلامی امارت لخوا جوړ شوی تعلیمي نصاب مو ټولو اسلامي ادارو او مکاتبو ته رسولی الحمدالله تر خپل حده پلي شوی دی انشاء الله چې نور کارونه به هم د الله[جل جلاله ]په نصرت او دولس په همکاری پر مخبیایو.

**ځرک : محترم مولوي صاحب د خوست دولتي چارواکي داسې پروپاگنډه کوي چې د اسلامي امارت مجاهدین په سیمو کې د پرمختیایي او د ټولگټو کارونو په وړاندې خنډ دي دا خبره تر کومه ځایه رښتیا ده ؟**

ځواب : د اسلامي امارت د مجاهدینو دخدمتونو اودخیر خواهی پوښتنه به له عامو بې طرفه ولسونوڅخه وکړو خو زه باید دومره ووایم چېپه کومو سیمو کې چې زمونږ حاکمیت دی او یا جهادي پروگرامونه روان دي په دې سیمو کې د عامه کارونو پروړاندې هیڅ خنډونه نشته بلکه زمونږ هدف د سیمو پرمختگ دی؛ لکه دبیلگې په توگه د صبریو په ولسوالۍ کې اوس مهال په (۳۰۰) پروژو کار روان دی، همدا راز باک ، علیشیرو، لکنو، شیخ امیر ، کې چې په ځینو کې پروژې پای ته رسېدلي اوپه ځینو کې بالفعل دوام لري .



**ځرک :محترم مولوي صاحب د اسلامي امارت په نظامي تشکيلاتو کې قطعات څنګه ارزوی ستاسو په نظر به په دښمن څومره اثر ولري او اسلامي امارت ته به څومره لاس ته راوړنې ولری؟**

ځواب : الحمدالله د اسلامي امارت په تشکيلاتو کې د نظامي قطعاتو جوړول ډېر يومثبت قدم دی د قوت اووحدت دخوندي ساتلو لپاره نهايي اهم اوموثر ځواک بلل کېږي او په اوسنيو حالاتوکې زما په فکر د اسلامي امارت لپاره ډېر اهميت لري او تاسو به يې هم ښه نتيجې لېدلي وي چې په اکثرو ولايتونو کې ښه په زړه پورې لاس ته راوړنې لري؛ لکه د بېلګې په توګه دغزنی ولايت دمرکزی زندان څخه د سلګونه تنه بنديانو په زور ازادول ، د کندز په څېر د مهم ولايت فتح کول اوپه همدې ولايت کې د بنديانو ازادول او داسې نورې ښې لاس ته راوړنې او په دښمن يې درانه اثرات تاسو مشاهده کولای شی .

**ځرک : محترم مولوي صاحب په پای کې دخوست يا دهيواد په نورو سيمو کې مجاهدينو او عامو هيوادوالو ته د ځرک د مجلې له لارې که کوم خاص پيغام لری؟**

ځواب : زه د اسلامي امارت ديو خادم په حيث په ډېر درنښت د هيوادله ټولومجاهدينو ورونو څخه غوښتنه لرم چې بايدټول مجاهدين ملګري په تقوی ، اتفاق ، اطاعت، اخوت دخپلومشرانو احترام په خپلو ملګرو دشفقت او له عام ولس سره د نيک چلند کوښښ وکړي؛ د نظامي چارو په څنګ کې دي دعام ولس ذهن سازي وکړي او د دښمن په شومو اهدافو د ولس خبرولو ته توجه وکړي .

مجاهدين ديد اسلامي امارت د فرامينو او دلايحې په تطبيق کې خپل جدو جهد جاري وساتي هيڅ اسلام دښمنه او مغرضو کسانو ته دي په خپلو صفونوکې ځای نه ورکوي ولس زمونږ سره د جهاد په چارو کې د ښې مټ حيثيت لري په مجاهدينو ورونو يې دسر، عزت ،مال، او عفت ساتل ضروري دي.

د اسلامي امارت د متحد صف متحد ساتل زمونږ اسلامي فريضه ده؛ د اسلامي اصولو په رڼا کې بايد دبيت المال، يتيمانو او شهيدانو پوره خيال وساتل شي؛ د نظامي عملياتو په دوران کې هم بايدمجاهدينورونه دولس د سپين ږيرو، زنانه وو ،ماشومانو او د عامه تاسيساتو د حفاظت خيال وکړي.

په نظامي ډګر کې بوخت ملګري دي خپل سنګرونه په ښکو اعمالو اباد وساتي؛ زه دټولو شهيدانو وارثينو ته د زړه له کومې تعزيت وړاندې کوم ،مجاهدينو ورونو ته دمتعال خدای په نصرت سره اميد ورکوم چې دغه کال به زمونږ د نيکمرغی ، ازادی، او د فتحې کال وي، انشاء الله دښمن د کاملې ماتې په درشل کې دی، اميد دی چې خپله کامله توجه په مخلصانه ډول د خپلو عملياتو په لوري واړوو.

په آخر کې د ځرک د مجلې دټولو کارکونکوشکريه ادا کوم او د باقي فرهنګي ملګرو،ليکوالانو، اديبانو، شاعرانو، خدمتونه دموجوده جهاد دترقی په رابطه نه هېرېدونکي او تاريخي خدمت ګڼو.

والسلام عليکم ورحمة الله وبرکاته .

خوشحاله اوبرياليي اوسی .

# د هلمند- کندهار لویه لار، حقیقت څه دی؟

خالد رعد

مجاهدینو په هلمند ولایت کې تقریبا د یوې میاشتې په موده کې گڼې سیمي د غلامو عسکرو له وجود څخه پاکې کړې، دلته مجاهدین په تعرضي او د دښمن لښکرې په دفاعي حالت کې دي، دوی د مرکز لشکرگاه په شمول په یو شمیر نورو سیمو کې په خپلو قرارگاوو او پوستو کې د ننه محاصره دي او د مجاهدینو د گرندي پرمختگ په سبب هره ورځ او شپه د خپل مرگ او اسارت شیبې شماري.

د دې ولایت د لوړ پوړو چارواکو خپ شوی غږ د اشغالگرو له رارسیدو سره سم یو ځل بیا پورته شو او د معمول مطابق یې خپل موسمي غرور د رسنیو له لارې ښکاره کړ. زموږ پوځونه لوړ مرال لري، ژر به له ټول ولایت نه طالبان وشړو، هیڅ سیمه نه ده نیول شوې، لویې لارې به ډیر ژر خلاصې شي، فلانۍ سیمه مو ونیوله او فلانۍ به ډیر ژر بیرته ونیسو، خو حقیقت بل ډول وو او دا خبرې یوازې د تښتېدونکو عسکرو د راټم کولو او بیا د مجاهدینو مقابلې ته د کاذب او مؤقتي توان ورکولو هڅه وه؛ خو حقیقت دا دی چې:

د دوی له لاسه وتلي سیمي تر اوسه پوري د مجاهدینو په لاس کې دي، پوځي وسایل یې ویجاړ او گڼ یې مجاهدینو ته په لاس ورغلي، زیاتو عسکرو یې ژوند له لاسه ورکړی او د لارو بندیدو یې په هر لوري د حرکت مخه ډب کړې ده.

د هلمند او کندهار لویه لاره د روانې اگست میاشتې په ۴مه نیټه د گوډاگۍ اداري د عسکرو په مخ په مکمل ډول وتړل شوه، د دوه سرې اداري چارواکي هره ورځ ادعا کوي چې لاره یې خلاصه کړې، مگر حقیقت دا دی چې لاره د دې کرښو تر لیکلو (د اگست ۲۶مه) پوري بنده ده، تر نن ورځې گڼو عسکرو او د بیلابیلو قطعو مجربو؟! افسرانو څو ځله د لارې خلاصولو ټېر وډباوه مگر د مجاهدینو د رسا کمیني گوزارونو له امله یې لا هم خپلې لاپې نه دي ترسره کړې.

دا لاره چې دښمنانوته د لویو زیانونو له امله په ځینو غربي رسنیو کې د پل صراط نوم ورکړل شو، د مجاهدینو لخوا د نهر سراج په اړونده سیمه کې تړل شوې ده، چې دروغجن چارواکي یې د رسنیو له لوډسپیکره د خلاصون اعلانونه کوي، مگر موثق معلومات دا دي چې د غلامي اداري د هاخوا محاصره عسکرو د ژغورلو په موخه گڼ تعرضي بریدونه هر ځل له سخت شکست سره مخ شوي، آن هوسا اشغالگرو عسکرو هم سیمه بمبار کړې خو لا هم نه دي توانېدلي.

د هلمند کندهار د لویې لارې د خلاصون د هڅې په دې جگړو کې ۴۵ شوبلې، ۳ رینجر موټر او ۴ عرادې اکمالاتي غټ موټر له منځه تللي، په چاودنو او مخامخ بریدونو کې د دښمن ۳۰۰ عسکر وژل شوي او گڼ نور ټپیان دي. په وژل شوو او ټپیانو کې اربکیان، پولیس، عسکر، سپیشل فورس او خپله د لښکرگا امنیه قومندان اقانور او د دیشو ولسوالۍ امنیه قومندان جانان هم شامل دي. د اگست له ۴مې تر ننۍ ۲۶مې نیټې پورې ۲۳ تعرضي بریدونه د دې لارې خلاصولو په موخه شوي چې ټول یې له شرمونکي شکست سره مخ شوي دي.

د گوډاگۍ اداري عسکرو د اشغالگرو بادارانو د تازه دمو عسکرو په ملتیا د نهر سراج د دیکه لنگ، شیندک مانده، ستارخان کندک او چارگل پمپ په سیمو کې د لښکرگاه له استقامته او دغه راز د کندهار له لوري خپل ټول زور وازمایلو، دوی په اکثرو بریدونو کې له هوایي ځواک نه هم استفاده وکړه او ټول وس یې د مجاهدینو د مغلوبولو لپاره وکاراوه مگر له بې دریغه بمبارد سره سره یې هم مالي او زیات ځاني زیان ولید، دکندهار او هلمند لار یې اوس هم پر مخ بنده ده او هیڅ لوری ته یې پرمختگ نه دی کړی.

دلته د ع او غ اداري سرخیلو ډیر له ترکونو وتلي جنرالان او گڼ پوځونه راواستول، ډیري هڅې یې وکړې چې له لاسه وتلي سیمي بیرته تر خپل واک لاندې کړي، خپل اشغالگرو ورکړی زور یې ټول تمام کړ، مگر کله چې پوه شول د مجاهدینو مورال او ځواک نه ماتېدونکی دی؛ نو یې یوازې د ځان دفاع غوره وبلله او بلاخره یې د خپلو بهرنیو بادارانو پراخې مرستې، ځمکني او هوایي ملگرتیا هم چندان گټه ورته ونه کړه، ځکه خبر نه وو چې د هغوی له پخوا نه د هلمند د څپو له شوره کرکه کیده.

سلطان اکا په درواغو کې دکلي نامي سړی و، داسې باتې به یې ویشتلې چې خلک به یې حق حیران کړل

دکلي ځوانانو به چې دساعت تېرۍ څه ونه موندل، په ګډه به روان شول او په سلطان اکا به یې بنډار ګرم کړ

سلطان اکا به درواغو ته داسې ښاخۍ ورلاندې کړه چې پوښتنه یې مکړه

یوه ورځ یې کیسه کوله؛ زه چې له عسکرۍ راوګرځېدم ظاهرشاهي چپه شوه، سردار داود واک ونیو او بیا له هغه وروسته انقلاب شو، سره کافر په وطن راغلل او افغانانو جهاد شروع کړ

وایي یوه ورځ مې دکلي کوز سر ته په پرته دښته کې ګډې ـ بزې پوولې چې جیټ طیارې دبمبارد لپاره راغلې، پر کلي یې یوه دوره وکړه، چې بیا راتاو شوې ما منډه واخیسته او په یوه وړه سوړه مې مازې سر دننه کړ، دپیلوټ راته پام شو، دعسکرۍ ددورې ملګری مې و ویې پېژندم او را غبر یې کړ




هلکه سلطانه دا ..... دې هم دریږه کړه چې موږ بمبار کوو.

تېره ورځ امریکایانو اعلان وکړ چې په روانه جګړه کې به دطالبانو پر ضد بیا ځل له B52 ډوله الوتکو استفاده وکړي، ورسره جوخت یې وویل چې دهلمند جګړې ته به تازه دمې امریکایي عسکر هم واستوي.

امریکایان غواړي روانه تونده جګړه په غورځو ـ پرځو مهار کړي، طالبان ووېروي او خپلو عسکرو او اجیرانو ته روحیه ورکړي

مګر اوس ټول ولس پوهېدلای چې امریکایي اعلامیې دسلطان اکا غورځې ـ پرځې دي، هسې خپل ساعت په تېروي

روانه جګړه دکوم کمزور پر خلاف نده پیل شوې، بلکې دنړۍ دزبر ځواک پر خلاف دیو کمزوري مګر د ایمان پر قوت دسنبال ولس بغاوت دی، دې ولس چې دغه بغاوت پیلوو هغه مهال دوه پنځوس ډوله الوتکې په خپل ټول قوت لګیا وې بمبارونه یې کول، ورسره جوخت کروز وربدل، کلیستر بمونه بادېدل، په ډېزې کټر بمونو دوطن اباد کورونه په کنډوالو اوښتل خو ددې ولس له ککرۍ یې دبغاوت نشه ونشوه ویستلای او دنړۍ دښکرورو سره ښکر په ښکر شول

امریکایانو ته دې جوته وي چې جګړه په غورځو ـ پرځو نه ګټل کېږي، هغه چې تا پرې دتبلیغاتو پر مټ دډار پېریان کښېنولي ول، هغه پېریان ترې اوس طالب پاڅولي او ارتې تۍ ستا دپرمختللې ټیکنالوژۍ مخې ته ولاړ دي

دې ولس دطالب په څېر قهرمان رهبر وموند، هغه طالب چې ستا غرور یې مات کړ، هسکه ټنډه یې درته ټیټه کړه، په خاورو خړه او سپېره کړه، پرمختللې ټیکنالوژي یې درته تۍ ـ تۍ د افغانستان په دښتو او میرو کې پرمخې نسکوره کړه او مجهز عسکر یې درته شل ـ شوټ او په روانې ناروغیو اخته کړل

امریکایان باید پوه شي چې پر خلاف کوم اجیر نه، بلکې مېړنی طالب دغزا امام دی او د ولس وریسې قیام دی، نور یې غورځې ـ پرځې انتن نه ورکوي، قوي ټیکنالوژي یې دقوي ایمان مقابله کې تش ټیمان دي، نه پرې ایمانداره خلک وېرولای شي او نه ترې وېره لري.

نه یې ډرون دطالب حوصله ماتولای شي نه دوه پنځوس ډوله، نه یې غلامان مخ ته تم کېدلای شي نه دغرب حرمونې پوځیان

څومره چې امریکایان بیا ځل دغزا میدان ته راګډېږي، هومره دځوانانو جذبات زیاتېږي او تورې یې تېزې څرخي

له ډېرو مې واورېدل او ډېر مې ولیدل چې د امریکایانو پر بیا ځل اعلامیو یې دشکرانې سجدې اداء کړې او په نوو ولولو غزا ته تیار شول

باوري یم دخدای په نصرت او دمېړنیو طالبانو پر مټ چې دا ځل به دهلمند او کندز اتلان امریکایي غرور داسې مات کړي چې له امله به یې امریکایان دتل لپاره له افغانستانه پښې سپکې او دتاریخ پاڼو کې به یې تورمخونه درا روان نسل لپاره یادګاري ثبت شي.

ان شاءالله العزیز

# خوشال اصفي

# دکابل حکومتي تکیه کلامونه

پر کلکو ټکو او شدیدو الفاظو یې غندو، یاد عمل د نړیوالو اصول خلاف عمل دی، په دې وحشتاکه برید سره یې وښودله چې هیڅ ډول دین او مذهب ته پابند نه دي، شهیدانو ته د جنت فردوس غوښتنه او ټپیانو ته د بیړنۍ روغتیا غوښتونکي یو، په دې کارسره یې ټول ډیپلوماتیک اصلونه تر پښو لاندې کړل، مونږ مو په غم کې شریک یو، د پیښې د څیړنې لپاره کمیسیون وټاکل شو، اصلاحات راولو، حکومت ټاکنیزو اصلاحاتو ته ژمن دی، دښمن ماتې خوړلې، فلانۍ دوسیه به ژر تر ژره وڅیړل شي، د څیړنیز کمیسیون پایلې به له خلکو سره شریکې شي، له دښمنه یې غچ اخلم او ...

دا ټول هغه تکراري جملې دي چې د اشرف غني ، عبدالله په ګډون دکابل اداري ډیرى مشرانو زمزمه کړي دي او لا یې هم زمزمه کوي. دا ټولې هغه جادويي جملې دي چې په یو ځل ویلو یې حکومتي مشران له هر ډول مسولیته خپلې اوږې سپکولی شي، دا ټول هغه کلامونه دي چې د ملي یووالي حکومت مشرانو د کار له پیله تر اوسه په خپلو ټولو خبرو کې ډیرې ویل شوي دي، او دا ټول هغه تکراري خبرې دي چې ولس یې نور داوریدلو حوصله نه لري.

دلته په هیواد کې که هره پیښه رامنځته کیږي، یا که په کورني سیاست کې کومه ستونزه مخې ته راځي اویا هم په بهرنۍ پالیسی کې له نورو هیوادونو سره اړیکې خرابیږي او هغوی مو په خاوره، حریم او آزادۍ تیری کوي نو د حکومت مشران یې په ډیرې آسانۍ جبیره کوي، بس کنفرانس ونیسي اویا اعلامیه خپره کړي چې پر اساس یې یاد عمل غندل شوی او د دښمن کار بلل شوی وي. دلته زمونږ حکومتي مشران فکر کوي چې د دوی مسولیت یوازې همدا دی چې تیری، ظلم او زیاتی دې په کلکو ټکو وغندي.

همدا څو ورځې وړاندې داسې راپورونه ورکړل شول چې پاکستان په تورخم کې هغه دروازه بشپړه او پرانیستله چې د مخنیوي لپاره یې زمونږ اتلو سرتیرو سرونه قرباني کړل، خپلې کورنۍ یې د ویر په تغر کېښولې او خپل اولادونه یې یتیمان پرېښودل.

حکومت لکه د نورو غمیزو او پیښو په څیر په افغان خاوره د پاکستان دا ښکاره تیری هم په کلکو ټکو وغندو او دا یې د ټولو نړیوالو اصلو خلاف عمل وباله. اوس پوښتنه دا ده چې آیا د حکومت دنده غندل او تقبیح کول دي او که له خاورې، ناموس او هویت څخه دفاع او ساتنه هم دوی پورې اړه لري؟

زمونږ حکومتي مشرانو ته اوس د خبر رسولو آسانه لار پیدا شوې ده، هر وخت په هره سیمه کې هره پیښه که رامنځته شي؛ دوی له دوی سره د اعلامیې تیار جوړ فرمت راواخلي او د پیښې سیمه او تاریخ یې نوی کړي او د فیسبوک له لارې یې خپره کړي چې په ترڅ کې یې یاده پیښه غندل شوې او د دښمن کار بلل شوی وي. دوی په دې طریقه خپلې اوږې له مسولیته سپکې کړي او هر څه سم شي. ځینې وختونه که پیښه ډیره ټکان ورکوونکې وي نو بیا ولسمشر

